په قراني اياتونوکي د

# توحيد الأسماء والصفات

تحقيق او څېړنه

ويندوی : علامة محمد الأمين الشنقيطي

ژباړه : لقمان حکيم حکمت

## د فضیلة الشیخ مناظر اهل حدیث محمد افضل السلفي حفظه الله تقریظ

**نحمده و نصلي علی رسوله الکریم اما بعد :**
**دا رساله په توحید الاسماء والصفات کې چې د علامه محمد الامین شنقیطي رحمه الله تصنیف دی مختصره او جامعه رساله ده په مسئله د توحید في الاسماء والصفات کې ، چونکه رساله په عربۍ وه نو کوم خلق چې په عربۍ نه پوهېږي هغو ترې استفاده نه شوه کولی نو محترم ورور مولانا لقمان حکیم حکمت صاحب دغه رساله په پښتو ژبه کې ترجمه کړه د پاره د عموم فائدې او په ډېر ښه انداز سره یې دا کارخیر کړی دی .**
**الله نه دعا ده چې مصنف رحمه الله او مترجم ته جزاء خیر ورکړي او دا د دوی د نجات ذریعه وګرځوي .**

**العبد الاحقر محمد افضل السلفي عفی عنه**
۲۴/۷/۱۴۳۷

## پیلیزه

**الحمد لله رب العلمين ، ولاعدوان الا على الظالمين ، كالمبتدعة و المشركين ، والصلاة والسلام على سيد الانبياء والمرسلين ، محمد وعلى اله واصحابه اجمعين ، وعلى كل من سار بنهجه وتمسک بسنته الى يوم الدين.**

**په ديني نظام کې توحيد ته هغه مقام حاصل دی کوم مقام چې په انساني جسم کې زړه ته حاصل دی ، په دې معنی که زړه روغ او له رنځونو څخه سالم وي نو نېک اثر يې په جسم هم له ورايه معلومېږي چې جسم روغ رمټ او تندرست دی .**

**توحيد تر ټولو شيانو دومره مهم او عملي حقيقت دی چې د انسان په وګړيز او ټولنيز ژوند ژواک کې ځانګړی اثر لري ، په انفرادي ژوند کې يې نيک اثر او مثبت اغېز دا دی چې په توحيد اقرار کول انسان ته دومره لوړ مقام ورکوي چې د اشرف المخلوقات په بناء يې مستحق دی.**

**او د انسان په ټولنيز ژوند يې مثبت اغېز دا دی چې د انساني معاشرې بنسټ د پوره عدل او صحيح مساوات قيام دی او کامل عدل او صحيح مساوات د الله پاک د احديت او يووالي او د هغه په اسماوو او صفتونو پورې تړلی دی .**

**د قراني ايتونو له لوستلو څخه دا جوته کېږي چې توحيد د انسانيت معيار او دکايناتو فطري غوښتنه ده او د قران کريم زياتره برخه هم په دغه مسئله غږېدلې ده ، له همدې ځايه ويلای شو چې توحيد د ټول دين دريمه برخه تشکيلوي او په دغه بناء د اخلاص سورت ته چې خالص د توحيد سورت دی د قرانکريم ثلث ويل شوی دی .**

**په دې کې هېڅ شک نشته چې توحيد الاسماء والصفات د اسلام د سپيڅلي دين هغه برخه ده چې د زياتو علماوو ، پوهانو او د مذاهبو څښتنانو ښې پکې ښويدلې دي ، ان چې مختلفې او بېلا بېلې نظريې يې په دې اړه څرګندې کړې دي ، په دغه منظور مې د دې کلک عزم وکړ چې د علامة محمدالامين شنقيطي** رَحِمَهُ اللهُ **عربۍ کې چاپ شوې محاضره پښتو ته وژباړم او خپل پښتانه ورونه هم د توحيد له دې**

عزتمند ډول څخه خبر کړم ، ځکه انسان د ژوند هدف یواځې دا دی چې خپل حق رب او پروردګار په صحیح معنی او ثابتو صفتونو وپېژني .

په اخر کې له رب العلمین د دې نعمت په بدل کې ډېر شکر اداء کوم چې زه یې د دې جوګه کړم چې د اسلامې دین د خدمت اړوند مې اندک عمل وړاندې کړ .

الله جل جلاله دې زما څخه دا عمل قبول وګرځوي او الله پاک دې پرې تمامو مسلمانانوته خیر، فائده او ګټه ورسوي .

  

## د موضوع د اختيارولو سبب او مهم لاملونه

د دې موضوع د اختيارولو ډېر لاملونه و چې زه يې د دې رسالې په ژباړلو مکلف کړم چې ځينو ته مې په سريزه کې لنډه اشاره وکړه او ځينې نور يې په لاندې ډول په لنډه توګه يادوم :

١ - : د توحيد الاسماء و الصفات اړوند مې په پښتو ژبه کې مفصل کتاب تر سترګو نه شو لکه څومره کتابونه چې په توحيد الالوهية او توحيد الربوبية کې ليکل شوي او ژباړل شوي دي ، په دې تکل چې په پښتو ژبه کې هم بايد د مشکل د حل په اندازه د توحيد الاسماء والصفات په نوم کتاب شتون ولري ، ما د دې کتاب ژباړل پېل کړل .

٢ - : په دې کې هېڅ شک نشته چې توحيد الاسماء والصفات د توحيد تر ټولو انواعو بهترينه نوعه ده ، ځکه دا ډول توحيد د الله پاک د ذات او د هغه د نومونو او صفتونو څېړنه کوي او له بل پلوه په توحيد الوهيت او ربوبيت باندې د خلکو ايمان نور هم تر هغه حده پياوړی کېږي چې څومره ايمان يې په توحيد الاسماء والصفات وي او رښتيا ده چې - شرف العلوم بشرف المعلوم -
د پوهې شرف او قدر د معلوم د قدر او شرف په اندازه وي .

٣ - : د توحيد الاسماء والصفات په موضوع کې مې د ليکنې پر ځای ژباړه ځکه غوره کړه چې شنقيطي صاحب په خپلې دغې محاضره کې د منطق او فلسفې باطل او پوک مصطلحات چې د عقيدې په تخريب کې عملي کردار اداء کوي د قرانکريم او نبوي حديثونو په رڼا کې په علمې انداز رد او ځواب کړي دي.

او د دغې سربېره پر هغې مذهبونو چې په توحيدالاسماء والصفات کې يې د خپل مذهب د ټنګښت په خاطر د قرانکريم او نبوي حديثونو او عقلي دلائلو څخه په خطا او غلطې استفادې کولو ناوړه مفهوم او ناروا موقف اختيار کړی دی ، د بطلان کرښې راښکلې دي او له صحيح دليل څخه د هغوی د ناسم استدلال خوګانې او نيمګړتياوې

په ګوته کړي دي .

۴ - : زه خپله هم کلک خواهشتمند وم چې د قرانکريم او نبوي نصوصو په رڼا کې د الله پاک د نومونو او صفتونو په باب دروسته لار وپېژنم ، تر څو وکولای شم چې د توان په اندازه خلک په سمه توګه قانع کړم .

۵ - : په الله ايمان هله کامل بلل کيږي چې په نومونو او صفتونو يې لائق ايمان ولرل شي .

۶ - : د الله د نومونو پېژندل د ايمان برخه ده ، په نومونو يې ايمان لرلو ته الله خپله رابللي يو او د الله د امر منل واجب دي .

۷ - : د سلفو صالحينو په څېر د الله په نومونو او صفتونو ايمان لرل د انحراف له ګردو ډولونو څخه انسان ته سلامتيا ورکوي ، له دې کبله معطله او ممثله او نور منحرفين ځکه معصيت کې واقع دي چې د الله په نومونو او صفتونو ايمان لرلو کې د سلفو صالحينو پېروکار نه دي .

۸ - : د الله په نومونو او صفتونو د هغه د شان سره لائق حقيقي ايمان لرل انسان ته د الله له عذاب څخه خلاصون ورکوي ، الله فرمايي ﴿ وَذَرُوا الَّذِينَ يُلْحِدُونَ فِي أَسْمَائِهِ سَيُجْزَوْنَ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴾[1]

۹ - : په قران کريم کې اية الکرسي ته د عظمت ځانګړی مقام حاصل دی ، له دې لامله چې د توحيد او د الله د نومونو او صفتونو باندې عام تام شمول لري .

۱۰ - : سورت اخلاص ته هم د توحيدالاسماء والصفات د جلاليت له کبله د قران دريمه برخه ويل شوې ده چې دې خبرې ته مو په سريزه کې هم اشاره کړې ده .

۱۱ - : په توحيد الاسماء والصفات باندې کلک حقيقي د الله د شان سره لائق ايمان لرل ډېرې ګټې لري چې باوري انسان ته يې په وخت په وخت معلومات کيږي .

---

(۱) سورت أعراف : ( ۱۸۰ ) .

## په ژباړه کې زما تګلاره

دکتاب په ژباړه کې مې لاندنۍ لاره خپله کړې ده :

١ - : د کتاب ترجمه مې په ډېره زیاته اسانه پښتو کړیده , چې له هر ډول غموض او خفاء څخه لرې ده .

٢ - : د هر ایت معنی مې په اسانه پښتو کې له باور وړ تفسیرونو څخه راخستې ده ، چې مشهور تفسیر یې د علامة سید عبدالسلام رستمي رَحِمَهُ اللهُ صاحب تفسیر دی .

٣- د ژباړې ترڅنګ مې کتاب ته د موضوعګانو فهرس هم ورکړ، ځکه چې دې کتاب پخپله فهرس نه درلود .

٤ - : د عقیدې اړوند مصطلحات مې هم ترجمه کړي دي ، په دې معنی که څوک د لوستلو په جریان کې له دغې مصطلحاتو څخه کوم مشکل دخپل ځان په نه فهمېدو کې ووینې ، کولای شي د ترجمه شوي اصطلاحاتو څخه فایده ترلاسه کړي.

٥ - : ټول هغه منطقي او فلسفي اصطلاحات چې د متکلمینو د الله د نومونو او صفتونو څخه د انکار لپاره په خپلو عقیدوی کتابونو کې راوړي دي ، زیار مې ویستې او د توان په اندازه مې په تفصیلي ډول څېړلي دي ، په دې خاطر چې د کتاب د لوست په مهال لوستوال ته ستونزه راولاړه نه شي .

  

## د تشکر اظهار

له هرڅه نه وړاندې د الله پاک چې حق پروردګار او د ټولو کائناتو خالق او مالک دی ، په ښایسته نومونو او اوچتو صفتونو موصوف ذات دی ، د هغې ټولو نعمتونو په بدل کې یې شکریه اداء کوم چې زما د بدن ټول غړي یې له شکریې اداء څخه قاصر دي په عمومي توګه یې کړدو انسانانو ته او په ځانګړی توګه یې ما ته رابښلي دي .

په دوهم پړاو کې د هغه دوو معززو هستیو چې زما له والدینو څخه عبارت دی شکریه اداء کوم چې زه یې تحصیل او تعلم ته وقف کړم او زما د تحصیل په بدل کې یې خپل ځانونه د ژوند هر ډول ستونزو ته سپر کړ، یواځې زما د روښانه مستقبل په تکل یی زما د دنیاوي هر راز کټې وټې نه لاسونه ومینځل .

په دریم پړاو کې د مجاهدینو د ستر سالار د شهید شیخ جمیل الرحمن رَحِمَهُ اللهُ شکر اداء کوم چې د هجرت په تنګو سختو حالاتو کې یې راته نبوي مشعلونه ودان کړل ، په رښتیا هم دوی الله پاک زمونږ د سعادت او نیکبختۍ سببونه وګرځول ، الله پاک دی ورته قبر روښانه او د جنت باغیچه وګرځوي.

او په څلورم پړاو کې د ټولو روحاني ښونکوو شکریه او مننه اداء کوم چې زما په زده کړو او تعلیم کې یې تر هر چا مهم ترین رول لوبولای دی بالخصوص قابل قدر استاذ قاضي محمد حکیم حکیم چې زما د برې لیک په دی منوګراف یې په زړه پورې اشراف او نظارت وکړ او زما ژباړې ته یې د زبر زیر امیل ورواچو .

په پای کې یو ځل بیا د دغی ټولو شکریه د یو شاعر په دې شعر اداء کوم چې :

فالله یجزیهم بما هم اهله * من لیس یجزیه یدي ولساني

فـالله یجزیهم بماهم اهله * من جنة الماوی مع الرضوان

او په ډېرې زیاتې تسلۍ ورته وایم چې :

هغه د ګلابونو کروندې چې تاسو یې د راټوکېدو او د غوټۍ کېدو او بیا د ګل کېدو په طمعه شپې سبا کولې نن یې ګلان نیولي دي ، هغه میوه دارې نیالګۍ چې پرون مو

**په علمي بڼونو کې کرلې وې نن یې مېوې نیولي دي .**
**ستاسو د ټولو دې ژوند نیکمرغه او د ژوند پای مو لا پسې نیکمرغه شه**
**جنتونه مو ځای او ټول روزل شوي داعیان مو صدقه جاریه شه ، زیار په د الله په دربار کې په دومره اندازه قبول شه چې ستاسو له تصور څخه بهر وي .**
**ستاسو د مبارکو لاسونو ، قدمونو ، د خولې څخه راوتي بابرکته کلمات مو د نړۍ تر پایه مه ودرېږه .**
**زمونږ علمي ټاټوبی ( د امام بخاري پوهنتون ) دې الله پاک په دعوت ، په ښونې او روزنې سمبال لري ، په خپلې ځانګړې مرستې او لورینې دې الله ونازوي .**

**امین یارب الخلائق اجمعین**

**لقمان حکیم حکمت**
**۰۹/۱۲/۱۴۲۹ هـ**
**۱۵/۰۴/۲۰۰۷م**

## د ليکوال د ژوند سوانح

شايد ډېر زيات خلک به داسې وي چې د فضيلة العلامة محمد الامين شنقيطي رَحِمَهُ الله د ژوند په اړه څه نا څه مات ګوډ معلومات لرى ، مونږ هم دومره ويلاى شو چې علامة شنقيطي رَحِمَهُ الله د رياض په نړيوال اسلامي پوهنتون کې د شرعياتو او ادبياتو په بخشونو کې د استاذ په صفت پاتې شوى دى .

همدارنګه يې د مدينې منورې په نړيوال اسلامي پوهنتون کې هم تدريسي دندې مخ په وړاندې بوولي دي، نور راز راز دندې يې هم دغلته ترسره کړيدي .

هغه له دې څخه هم مشهور دى چې تعارف يې وشي .

زيات خلک به داسې هم وي چې شنقيطي صاحب خو به يا له سماع له لارې پېژني او يا به يې ورسره ليدل کتل شوي وي خو د شاګرد په توګه يې ما هم د مزيد تعارف په خاطر خپل قلم د هغه په تعارف داسې ګويان کړ :

## د شيخ رَحِمَهُ الله نوم

د شيخ رَحِمَهُ الله نوم محمدالامين د پلار نوم يې محمد المختار او د نيکه نوم يې عبدالقادر دى ، دغه ډول مرکب نومونه لکه د هغه او پلار يې چې دي د هغوى په کلي ښارونو کې ډېر دي .

## د شيخ رَحِمَهُ الله نسب

د شيخ رَحِمَهُ الله نسبي سلسله يعقوب بن جاکن الابرم ته رسيږي چې د مشهورې او معروفې قبيلې ( جکنيين ) نيکه او پدر کلان شميرل کيږي ، دغه قبيله په نسبي سلسله کې د ( حمير ) مشهورې قبيلې ته رسيږي .

## د شيخ رَحِمَهُ الله پلرنی وطن

شيخ رَحِمَهُ الله د موريتانيا په مشهور ښار شنقيط کې زېږدلی دی ، شنقيط د موريتانيا ختېځه برخه ده ، شنقيط پخپله د محيط اطلسي خيتځ، د مراکش او جزائر جنوب او د سنګال شمال ته واقع دی .

## د شيخ رَحِمَهُ الله پيدايشت

شنقيطی رَحِمَهُ الله په ( ١٣٢٥ هـ ) کال کې دې فاني دنياکۍ کې سترګې غړولي دي ، مور يې د پلار خپله د تره لور وه .

## د شيخ رَحِمَهُ الله نشات

شنقيطي رَحِمَهُ الله په داسې کورنۍ کې زېږدلی دی چې نارينه او زنانه قام يې ټول په علمي جامه ملبوس وو ، د عادت سره سم هغه خپلې لومړنۍ زده کړې د خپلو ماماګانو او ماميانو څخه کړيدي ، همدغې لومړنی زده کړو يې د مستقبل په روښولو کې تر هرڅه مهم رول ولوبو.

## د شنقيطي رَحِمَهُ الله زده کړې او تحصيل

شيخ رَحِمَهُ الله تر ټولو لومړی پخپل پلرني ټبر او ټاټوبي کې له بېلابېلو پوهانو څخه رنګارنګ فنون زده کړل چې له تفسير ، فقه ، اصول ، نحو،صرف ، بلاغت څخه عبارت دي ، هېره دې نوي چې سيرت يې د دغی تعليماتو ترڅنګ د خپل کور له زنانه و څخه زده کړی و او ورسره يې منطق له مطالعې له لارې ضبط کړ .
زيات استاذان يې د خپلې کورنۍ او کلي ميشت خلک دي چې له جملې څخه يې شيخ محمد بن صالح ، علامة احمد الافرم بن المختار ، شيخ احمد بن عمر، لوی فقيه محمد بن النعمة الزيدان ، فنون پوهه احمد بن فال بن وده او داسې نور..دي

## د پوهنې او تحصیل منهج

د شیخ رَحِمَهُ الله په کلو اوښارونو کې هېڅ ځوک دا نه شي کولای چې مختلف فنون سره یو ځای یاد او زده کړي او نه زده کونکی کولای شي چې له دوو او یا له زیاتو ښونکو ځخه په یو ان کې زده کړې مخ په وړاندې بوځي، زده کونکې یو فن تر هغه مهال زده کوي ترڅو یې ښه قوي ضبط او یاد کړي .

## د پوهنې او تحصیل لاربنود

هغه فن چې زده کونکې یې په زده کړه بوخت وي تر ټولو لومړی د دغی فن متون په یادو ضبط کوی ، تر یوحده دا هم کېدای شي چې د ښونکي سره بېلا بېل فنون د تدریسي مادې په څېر یو ځای کړي .

د درسونو رسمي دوام هره ورځ له سهار مهال شروع اخلي او د ماسخوتن له لمونځ سره پای ته رسیږي چې ترمنځ یې د خوراک څښاک او ذهني استراحت د وختونو خاص خیال هم ساتل کیږي .

دغه د شیخ رَحِمَهُ الله د کلي او ښارد درس او تدریس مهال ویش دی چې د اخترونو د مناسبت ترڅنګ پکې د پنجشنبې او د جمعې مبارکې ورځې هم رخصتیانې وي .

برسېره پر دغې د تېرو درسونو مذاکره ورپکې هرکال د رمضان د مبارکې میاشتې په دوران کې د دورې په شکل کیږي .

د درس او تدریس په مهال د ښونکي او زده کونکي خپل منځنی اړیکې لکه د ځوی او پلار او مور ترمنځ علاقه وي ، هر زده کونکی خپل اړوند د ژوندچارې پخپله تر سره کوی ، خو که زده کونکی د زده کړې په مهال کوم اقتصادي او یا هم بل کورنی مشکل حس کړي نو ښونکی یې ورسره کلکه مرسته او کومک کوي .

ځینو وختونو کې داسې هم کیږي چې ښونکی د خپل زده کونکي خرچه تر هغه مهاله په خپله غاړه اخلي چې ترڅو زده کونکی ورسره ټولې زده کړې بشپړې کړې .

خو شیخ رَحِمَهُ اللهُ پخپله چې به یې له کوم ښونکي څخه زده کړه کوله نو خپل ځان به یې په مالي پانګې او په پوره توښې او زیاتی بودیجې د خادمانو په شمول کلک سمبالو

## د شنقیطي رَحِمَهُ اللهُ له تحصیل وروسته ژوندی کردار

له فراغت وروسته شنقیطي رَحِمَهُ اللهُ خپلو زده کړوته نوره ادامه هم ورکړه ، د دغې ترڅنګ به یې د خلکو ترمنځ شخړې او د تاو تریخوالي لانجې کونجې هم فیصله کولې ان چې د عوامو او موجوده حکومت په وړاندې یې قضائي پرېکړې قابل قبول وې .

## د شنقیطي رَحِمَهُ اللهُ حجاز ته سفر

په ۱۳۶۰ هجري کال کې یې د حج د مراسمو د اداء کولو په منظور حجاز ته سفر وکړ او هم هلته یې په نبوي مسجد کې د تدریس لړې پیل کړه ، د دغې ترڅنګ ورسره ځینو چارواکو د پېژندګلو خطونه سره یو بل ته واستول بالاخره یې ورنه په حرمینو کې د تدریس لپاره د پاتې کېدو طلب وکړ.

په ( ۱۳۷۱هـ ) کال کې ورڅخه په عامو معهدونو او پوهنتونونو کې د ښوونې طلب وشو ، بیا په ( ۱۳۸۱ هـ ) کې د مدینې منورې نړیوال اسلامي پوهنتون ته منتقل شو

## د شنقیطي رَحِمَهُ اللهُ علمي لیکنې او اثار

۱- انساب العرب . نشته دی

۲- فروع مالک .

په شعري بڼه یې لیکلی دی .مخطوط.

۳- الفیة المنطق . مخطوط

۴- نظم في الفرائض . مخطوط

۵- رحلة خروجه من البلاد الى المدينة .

په دې لیکنه کې یې د پوهنې او روزنې بېلابېل ټول ډولونه لیکلي دي ، برسېره پر دغې یې هغه مناقشې او بحثونه هم لیکلي دي چې ورسره په لاره کې شویدي . مخطوط

۶- شرح على مراقي السعود . مخطوط

۷- شرح على السلم . مخطوط

۸- دفع ايهام الاضطراب عن اى الكتاب . مطبوع[1]

۹- منع جواز المجاز فى المنزل للتعبد و الاعجاز . مطبوع .

۱۰- اضواء البيان فى تفسيرالقران بالقران .

د دې کتاب لومړني شپږ جلدونه چاپ شوي دي چې د سورت حج په اخرنې ایت سرته رسیږی او د زیاتو مطالبو اوغوښتونو له کبله اول او دوهم جلدونه بار بار نشر شوي دي[2].

۱۱- مذكرة فى الاصول.

۱۲- ادب البحث و المناظرة .

دا د علامة شنقيطي رَحِمَهُ الله په اړه مات کوډ معلومات و چې د قلم په ژبه مو پرې د کاغذ مخ تور کړ ، اما هغه معلومات چې د هغه په هکله یې د هغه شاګردان لری نو هغه یوائې مثالي نه بلکې په ادب او تربیه کې نېک مقتدی و او د علمي اړخه اګر که هغه مالکي مذهبی و ، خو د مذهب خیال ساتنه یې اخری نظریه وه ، له همدغې نګاه نه هغه د الله پاک په ځانګړي احسان مجتهد او د اجتهاد په کاڼه سمبال و ، د الله پاک

(۱) دا کتاب د اضواء البیان په اخره حصه کې چاپ شوی دی

(۲) هېره دې نوي چې اووم اواتم جلد یې د هغه د معتمد او پیاوړي شاګرد ( عطية محمد سالم ) له تکمیل شخه دی .

**له فضل او مهرباني له مخې هغه کولای شول چې احکام له ايتونو او نبوي حديثونو څخه په ښه توګه استنباط کړي او د مخالفو مسئلو په هکله کره کتنه وکړي ، بيا د صحت او صواب په مهال ورته ترجيح ورکړي .**

**د دی مسايلو په اړوند هغه څوک ښه معلومات لري چې د هغه تفسير اضواء البيان يې په ښه سوچ او فکر او په پوره تحقيق لوستلی وي .**

**له فاني دنيا څخه يې( ۱۳۹۳ هـ ) کې په مدينه منوره کې خپلې سترګې پټې کړې .**

***اروا دې ښاد وي***

  

## د توحيد الاسماء والصفات تعريف

۱ - : په هغو نومونو او صفتونو ايمان لرل چې الله پرې خپل ځان په قران کې يا پرې رسول کريم ﷺ په صحيحو او صريحو حديثونو کې موصوف کړی وي دغه نومونه الله لره داسې ثابتول چې څنګه ورسره مناسب وي[۱]

۲ - : يا د الله د عظمت او جلال او جمال په صفتونو باندې هر اړخيزه د يووالي عقيده لرل او په هغه نومونو او صفتونو کلک باور لرل چې الله د خپل ځان لپاره په قران کريم کې او يا هم ورله رسول کريم ﷺ په صحيحو او صريحو حديثونو کې ثابت کړي وي[۲].

۳ - : شيخ عبدالرحمن بن سعدي رَحِمَهُ اللهُ وايي : الله پاک د عظمت او جلال او جمال په ټولو صفتونو په هر اړخيزه او ځانګړي توګه داسې توصيفول چې د شريک او شبيه سره هېڅ راز تعلق نه لري .

په دې معنی چې الله لره د معناګانو او احکامو سره چې قراني ايتونه او نبوي حديثونه پرې دلالت کوي ټول هغه اسمونه او صفتونه ثابتول چې هغه د ځان لپاره ثابت کړي دي او يا ورله رسول کريم ﷺ ثابت کړي وي چې نه به ترې هېڅ ثابت نوم او صفت نفي کوي او نه به په کې تعطيل ، نه تحريف او نه هم تمثيل کوي .

او ورځخه د نقص او عيب ټول هغه اسمونه او صفتونه نفي کول چې د الله د کمال سره منافات لري[۳].

  

(۱) أعلام السنة المنشورة د شيخ حافظ الحكمي ليكنه او د مصطفى أبو النصر شلبي تحقيق : ( ٥٦ ).

(۲) الأسئلة والأجوبة الأصولية على العقيدة الواسطية د شيخ عبد العزيز السلمان ليكنه : ( ٤١- ٤٢ ) .

(۳) القول السديد في مقاصد التوحيد : ( ٣ / ١٠ ) مجموعة ابن سعدي .

## په توحيد الاسماء والصفات باندې د ايمان لرلو ګټې[(۱)]

د الله په نومونو او صفتونو ځان پوهول او د الله د مراد سره سم ترې فهم اخستل له شرف او عزت څخه ډک علم دی چې د مومن په ايمان نيکې اغېزې او ګټور اثر لري.

د الله د نومونو اوصفتونو د بيان او تفصيل ، د وضاحت او شرحې متعلق مخکنو او وروستنو ديني حق پرسته علماو ډېر زيار ويستی تر څو ګټې او فائدې يې مسلمانانو ته لا پسې روښانه کړي چې د بېلګې په توګه يې زه ځينې قابل ذکر بولم :

۱ - : په لائقه توګه الله هله پېژندل کيږي چې په نومونو او صفتونو يې لائق علم او ايمان ولرل شي ، الله خپل مخلوق په دې خاطر شته کړی دی چې هم يې وپېژني او لائقه بندګي يې وکړي ، که د توحيدالاسماء والصفات په علم څوک بوخت وي نو پوهه دې شي چې په هغه څه بوخت دی چې الله پاک ورلره پيدا کړی دی ، او په توحيد الاسماء والصفات باندې جهل او ناپوهي ، په دې علم ځان نه مصروفول د هغه عبادت ضياع ده چې له کبله يې الله مخلوق شته کړی دی ، دا به د انسان لويه جفا وي چې ورځ تر بلې پرې د رب کائنات رنګارنګ پېرزوينې او لورينې راوريږي او دا يې اړوند جاهل وي او معرفت يې هېڅ اړتيا نه بولي .

انسان تر هغه خپل رب نه شي پېژندلای تر څو هغه نصوص په لائقه توګه ونه پېژني چې د هغه په نومونو او صفتونو شمول لري او د هغه په افعالو او اسماؤ يې

---

(۱) كتاب التوحيد ومعرفة أسماء الله وصفاته على الاتفاق والتفرد د ابن مندة ليکنه ، تحقيق الشيخ د. علي الفقيهي ( ۲ / ۱۸- ۱۹ ) . التفسير القيم د ابن قيم ليکنه : ( ۲٤ – ۳۷ ) . مفتاح دار السعادة د ابن قيم ليکنه : ( ۲ / ۹۰-۹۱ ) القول السديد د ابن سعدي ليکنه : ( ۱٦۱- ۱٦۳ ) . الأسماء والصفات في معتقد أهل السنة والجماعة د دکتورعمر الأشقر ليکنه : (۱۸- ۳۹ ) .

**تصريح کړي وي، لکه اية الکرسي، سورت اخلاص او د سورت حشر اخرني ايتونه مثلاً ..**

۲ - : **الله په خپلو نومونو او صفتونو په لائقه توګه پېژندل په انسان کې د هغه سره محبت، په عمل کې اخلاص، له الله څخه ډار او خوف، له هغه څخه امېد ساتل او ... په نصيب کوي، له دې څخه بله نېکمرغي نشته او څوک چې د الله نومونه او صفتونه ، د هغې معناګانې او پکې سوچ، د هغې احکام او مقتضيات ونه پېژني هېڅکله الله پاک په حقه توګه نه شي پېژندلای .**

۳ - : **د عبوديت په منهج رب کائنات لپاره په خپلو اعمالو کې اخلاص راوستل** : **دا ګټه او فائده انسان ته هله په لاس ورځي چې د الله نومونه او صفتونه په حقه توګه پېژني، دا لويه ګټه ده هېڅ ساری نه لري، د الله له پلوه د راغلي شريعت څخه موخه هم دا ده چې انسان نېک او صالح جوړه شي او د الله په نومونو او صفتونو ايمان او علم لرل انسان له کږ لېچ او ښوئېدو څخه بچ ساتي، د عبادتونو او تقوا، د پرهېزګارۍ او دينداری دروازې ورته خلاصوي، په دې سره يې ايمان په زړه کې ثبات پيدا کوي، په صبر او زغم يې روزي، په مشکلاتو او کړاونو کې يې مرستندويه وي، د الله نومونه اوصفتونه زده کول او په معناګانو يې ځان پوهول د بنده په ايمان کې د زيادت سبب جوړيږي، د بېلګې په توګه که بنده د الله ( عَظِيْم ) نوم وپېژني او په معنا يې ځان په لائقه توګه وپوهوي زړه د الله د عظمت نه ډک شي. د جمال او احسان، د رحمت او پېرزو نومونه يې چې زده او بيا پرې ځان وپوهوي په زړه کې يې د الله د عبادت شوق راولاړ شي، زړه يې الله ته مايله شي او له حمد او شکر نه ډک شي .**

**که د الله د عزت او جبروت، د حکمت او علم او د قدرت نومونه زده او ځان پرې په لائقه توګه وپوهوي نو زړه له انکسار او خضوع څخه دومره ډک شي چې د خپل ايمان خوند وڅښي او د ځان سره دومره کلکه محاسبه شروع کړي چې خپله هره له**

**وړې نه وړه ګناه ځان ته دومره لويه ونيسي چې نزدې د هلاکت سبب يې وبولي سره له دې چې الله رب رحيم به ورته بخشش کړي هم وي .**
**که د الله د علم ، خبرداری ، احاطې او د مراقبت متعلق نومونه او صفتونه واوري ، زده يې کړي او ځان پرې په لائقه توګه وپوهوي زړه يې د الله په مراقبت ډک شي ، خپل ټول سکنات او حرکات ، خپل ځانلوالی او د ژوند هر حالت دومره قابو کړي چې د ګناه له هر ډول څخه ځان دومره کلک رانغاړي چې که هسې په تصور کې يې هم د ګناه خبره راشي الله ته په ژړا او فرياد وي چې ای رب کريم !! ستا تر مخې راڅخه دومره لويه بې ادبي شوې ده او ستره ګناه مې کړې ده که ته مې بخشش نصيب نه کړې د اور خس او خاشاک به شم او داسې نور ...**
۳ - : **له سرغړونو څخه ځان راقابو کول** : **د نفس غريزي صفت دی چې هوا پرستي او شيطاني وسوسې ورته ډېرې ښې ښکاري ، خو چې د الله په نومونو او صفتونو څوک علمي عبور ولري او ځان يې پرې په لائقه توګه پوهولی وي ، که څه هم د ګناه د کولو وخت داسې جوړ وي چې هيڅ بشري نفس يې نه شي ليدلی او نه يې څوک د ځواب ويلو وي او نه داسې سختې وي چې تر ګريوانه يې د چا لاس ورسيږي خو د الله په نومونو او صفتونو د علم او پوهې په برکت الله په ځان بصير وبولي ، ځان ته راياد کړي چې که په دې حالت مې الله روح قبض کړي زما به ورته څه ځواب وي ؟ زړه يې ورپيږي ، د شهوت جوش او خروش يې دومره ټيټ او لاندې شي چې د الله د نوم رايادولو سره نور نو بيخي له حرکت ووځي ، د شهوت څپاند مقاومت يې د اوړې د وريځو په څېر تري تم شي ، په خلوت کې يې د زړه ناوړه غوښتنې د سېلاب د ځګونو په څېر په ځمکه کې ښکته شي .**
۵ - : **بشري نفسونه د نور خلکو په لاس کې نعمتونو ته ناځي ، کله نا کله خبره د حسد دومره اوج ته ورسيږي ، خو چې انسان ځان ته د الله پاک ( حَكِيْم ) نوم راياد کړي چې الله څه کوي ، چا ته دنيا ورکوي او چا ته يې نه ورکوي په دې کې يې**

حکمتونه او رازونه دي ، نو په دې سره له حسد څخه راستون شي ، په کوم حالت چې الله پيدا کړی وي پرې خوشحاله او راضي شي ، د نفس واګې په قابو کې راولي او له سرغړونې رابند شي .

٦ - : کله چې له انسان څخه سرغړونه وشي نو پراخه ځمکه پرې راتنګه شي ، له خپو څخه يې ځمکه وتښتي ، د وهمونو او سوچونو سيلاب يې لاهو کړي ، د شهوت موجونو يې لا پسې واخلي او د هوا پرستې په سيند کې غوپه کړي ، شيطان ورته راشي او په خپل رب يې بد ګمانه کړي چې ايا د الله د بښنې لائق يې ؟ تا خو دا ګناه په کراتو او مراتو وکړه نو ايا توبه به دې ځای ونيسي ؟ ايا توبې ته به دې اسمان دروازې خلاصې شي ؟ له دې سرغړونې وروسته به اسلام تا ته په خپلې دائره کې ځای درکړي ؟؟ او داسې نور وهمونه چې شيطان پرې له انسان څخه د الله د رحمت لارې ورکوي ، خو که انسان د الله په نومونو او صفتونو علمي عبور ولري ورته ياد به شي چې الله د ( رَحْمَن او رَحِيْم ) نومونه لري ، الله ( تَوّاب ) او ( غَفُوْر ) دی ، د دې پرځای چې سرغړونې ته ادامه ورکړي چې هسې مې هم الله نه بښي !! د دې پر ځای چې شيطان يې لا پسې مخکې بوځي ، زر راستون شي او له الله څخه د خپلې سرغړونې بښنه وغواړي .

٧ - : کله چې مصيبتونه او کړاونه د انسان ژوند دومره تنګ او لنډ کړي چې نږدې يې شيطان په هغه پلمو ښکار کړي چې انسان يې د ځان لپاره د نجات لاره ګڼي ، دې ته يې اړ کړي چې ځان ووژني ، د خلکو شتمني اختطاف کړي ، د نورو عزتونه او ماليت د ځان لپاره حلال وبولي ، يا داسې نور د ژوند متعلق حالت چې اسلامي شريعت يې د روا والي حکم نه وي کړی .

نو که انسان د الله په نومونو او صفتونو علم ولري او ځان پرې پوهه کړي ، په ذهن کې يې له راغلو وسوسو نه خورا پياوړې قلعه ته امان يوسي ، ټول ډار او وېره به يې له نفس څخه داسې وکوچيږي لکه بيخی چې پرې کږې نسکورې نه وي تېرې

شوې .

۸ - : کله چې انسان د شرخوښو ، د الله د دين دښمنانو او فاجره فاسقه خلکو سره مخ اتې شي ، په عداوت او دښمنۍ کې يې کړاونه دومره ونيسي چې حتی د خوراک مړۍ يې پرې نه پېرزو کيږي ، زړه يې ستوني ته راپورته شي ، نو که څوک د الله په نومونو او صفتونو علم او لائق باور ولري پوهه به شي چې رزق د الله په لاس کې دی ، د دې پر ځای چې مورال يې مات شي لا يې پسې مورال لوړ شي ، په ظاهر او باطن کې په الله توکل او عبوديت يې لا پسې زيات شي .

۹ - : انسان ته رنځ او ذهني يا بدني ناجوړتيا رسيږي ، يا د الله عز وجل احکام مات او د خپو لاندې کړي ، درد او غم يې حواس نزدې په داسې څه بدل کړي چې د الله سره يې اړيکې وشکوي ، ناامېدي يې په زړه کې دېره شي ، د ژوند لارې کودرې پرې تورې اورې شي ، خو که څوک د الله په نومونو او صفتونو لائق ايمان او بارو لري پوهه به شي چې الله شافي دی ، خپلې لېږې به ورته پورته کړي او د روغ صحت غوښتنې به درې وکړي ، د اميدونه بندې دروازې يې بېرته شي او صحتمند شي .

۱۰ - : د الله په نومونو او صفتونو علم لرل د کړدو شيانو بنسټ دی ، که څوک يې په نومونو او صفتونو لائق علم ولري نو د صفتونو او افعالو څخه د خپل نبکمرغه ژوند لپاره د شرعي احکامو د استدلال جوګه شي ، ځکه چې د الله ټول افعال د عدل او احسان ، د رحمت او حکمت په بنسټ ولاړ دي .

۱۱ - : د الله د نومونو او صفتونو په باب کې چې څوک علمي څېړنې کوي نو د توحيد سوچه باب به ورته خلاص شي، د توحيد دا دروازه خالص موحدينو ته الله خلاصوي.

۱۲ - : د الله پاک د نومونو او صفتونو علم د انسان ايمان ته پرمختګ ورکوي ، ځکه چې په دې سره د انسان زړه ته مينه او محبت لويږي ، په زړه کې الله ته انابت او تقديس پيدا کوي او د کوم سړي چې ايمان زياتيږي په زړه کې يې د الله عظمت لا

**پسې وده کوي، الله پاک فرمايي : ﴿ وَالَّذِينَ اهْتَدَوْا زَادَهُمْ هُدًى وَآتَاهُمْ تَقْوَاهُمْ ﴾**(۱)

**ژباړه : کوم خلک چې دهدایت په لور وتېيبږي الله ورته نور هدایت هم وکړي او نوره تقوا هم ورکړي .**

۱۳ - : **څوک چې د الله نهه نوي نومونه وشماري جنت ته به داخل شي، نبي کريم صلی الله علیه وسلم فرمايي : ﴿ اِنّ لله تِسْعَةً وَ تِسْعِيْنَ اسْماً ، مَائَةً اَلاّ وَاحِدَةً مَنْ اَحْصَاهَا دَخَلَ الْجَنَّةَ ﴾**(۲).

**ژباړه : د الله يو کم سل نهه نوي نومونه دي، څوک چې يې وشماري جنت ته به ننوځي .**

  

---

(۱) سورت محمد : ( ۱۷ ) .

(۲) صحيح البخاري، كتاب الدعوات (٦٤١٠) ، اومسلم كتاب الذكر والدعاء (٢٦٧٧).

## هغه ډلې ټپلې چې په اسماؤ او صفاتو کې ګمراه شوي دي

ځینې داسې خلک د مسلمانانو په ټولنو کې هم تېر شوي دي چې که څه یې هم ځانونه مسلمانان بولل خو ولې د الحاد په رنځ اخته وو ، هغه الحاد چې په قران کریم پرې الله پاک ملحدینو ته سخت وعید اورولی دی ، الله پاک فرمایي : ﴿ وَلِلّه الْاَسْمَاءُ الْحُسْنىٰ فَادْعُوهُ بِهَا وَذَرُوا الّذِينَ يُلْحِدُونَ فِي اَسْمَائِه سَيُجْزَوْنَ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴾[(۱)]
ژباړه : د الله لپاره ښایسته نومونه دي په دغې نومو یې راوبلئ او هغه خلک پرېږدئ چې په نومونو کې یې الحاد کوي د دوی د کړنوسره سم به ورته سزا ورکړي .
په دې خاطر چې هدف لا پسې روښانه شي د ځینو هغو ډلو ټپلو یادونه کوو چې د توحید په دې ډول کې بې لارې شوي دي :
۱ - : **جهمیه** : دوی د جهم بن صفوان[(۲)] پېرو کار دي او له اسماؤ او صفاتو څخه په ټپه منکر دي .
کولای شو چې عقیدوی ځینې افکار یې لوستوالو او د عقیدې مینوالو ته په مختصره توګه نمونه وړاندې کړو .
<u>د جهمیو عقاید په لاندې توګه دي</u> :

---

(۱) سورت اعراف : ( ۱۸۰ ) .
(۲) جهم بن صفوان په کوفه کې پیدا او لوی شوی دی ، په کوفه کې د جعد بن درهم چې له دمشق څخه کوفې ته راتښتېدلی و ، په ملګرتوب کې پاتې شو ، په ( ۱۵۰ هـ ) کال کې چې د خالد بن عبدالله قسري رَحِمَهُ اللهُ په لاس جعد مردار شو جهم بن صفوان یې افکارو ته پوونده ورکړه تر څو د ځمکې ختیځ او لویدیځ ته یې ورسوي ، ډېر پلویان یې پیدا کړل هغه و چې ( ترمذ ) ته وشړل شو ، په ترمذ کې یې خپل افکار لا پسې دومره خپاره کړل چې د خراسان په ګڼ شمېر ښارونو کې رواج پیدا کړ ، د امویه دولت پر ضد د حارث بن سریج په ملتیا یې انقلابي موخه لرله چې په ( ۱۲۸ هـ ) کال کې یې په کې سر وخوړ .

**۱ - : الله پاک له مثیل او شبیه څخه پاک ګڼل او هغه قراني ایتونه چې مخلوق سره ترې تشبیه راځي په کې تاویل کول لکه د الله لاس ، مخ ...له هغې صفاتو څخه چې دوی په کې تاویل کړی دی یو هم د کلام صفت دی ، دوی وایي : د الله کلام خارج نه بلکې د هغه په نفس کې داخل دی ، له دې کبله یې قران مخلوق بللی دی او د ( لاَ تَدْرِكُهُ الاَبْصَارُ...) ایت څخه په ناوړه استدلال یې په اخرت کې د الله رؤیت هم نفي کړی دی او اټکلوي چې د بشریت په سترګو د الله لیدل هېڅ امکان نه لري .**

**۲ - : له الله څخه ازلي صفتونه نفي کول لکه قدرت ، اراده ، علم ، او وایي چې دغه صفتونه عین د الله ذات دی او مستقل ترې نه دي ، موخه یې دا ده چې مثلا : هغه له ذات پرته بل قدرت نه لري او نه له ذات پرته بله اراده لري او داسې نور...**

**۳ - : انسان په خپلو کارونو مجبور دی معنی دا چې د هېڅ کار اړوند مستقله اراده او اختیار نه لري ، د افعالو نسبت انسان ته داسې دی لکه جماداتو ته د افعالو نسبت لکه لمر راوختو ، لمر خو خپله نه راخیژي بل څوک یې راخیژوي نو داسې د انسان افعال هم دي .**

**۴ - : ایمان د زړه پورې تعلق لري ، د ژبې په تلفظ که څه هم څوک د کفر کلمه ووایي خو ایمان یې سالم دی ، هېڅ ډول ګناه ایمان نه ستونزمنه وي له دې کبله ورته د ایمان په باب کې مرجئه هم ویل کیږي .**

**۵ - : الله په هر ځای کې دی ، ابن خزیمه رَحِمَهُ الله ورڅخه په خپل سند نقلوی چې په ترمذ کې ترې چا وپوښتل چې الله چرته دی ؟ کور ته ننوت ، څه ورځې وروسته راووت او خلکو ته یې وویل : الله هوا ده ، د هر شي سره په هر ځای دی او په هر څه کې دی ، هېڅ ځای له الله څخه خالي نه دی .**

**۶ - : هغوی عقیده لري چې جنت او اور به زوال خوري ،ځکه چې څه شی حرکت لري هغه زوال لري ، که اور او جنت د تل لپاره وی نو الله به په ( خَالِدِينَ فِيهَا اِلّا مَا شَاءَ اللّـهُ اِنّ رَبّکَ حَکِيمٌ عَلِيمٌ ) کې استثناء نه کوله .**

**دا راز جهمیه سره خپلې منځنې ډېرې ډلې ټپلې لري :**

**❒ معطله : دوی عقیده لري چې په څه شي هم د انسان وهم واقع کیږي هغه مخلوق دی او څوک چې وایي چې الله به لیدلی شي هغه کافر دی .**

❑ **مریسیه** وایي : د الله زیاتره صفتونه مخلوق دي .

❑ **ملتزمه** وایي : الله په هر ځای کې دی .

❑ **واردیه** یې وایي چې د رب په خالي معرفت انسان د جنت مستحق دی خو که جهنم ته څوک بوتلل شي هېڅکله به ترې را ونه وځي .

❑ **زنادقه** یې وایي : هېڅ څوک نه شي کولای ځان لپاره رب ثابت کړي ، ځکه اثبات هله کیږي چې په حواسو یې ادراک وشي او د څه شي ادراک چې په حواسو وشي هغه د ربوبیت جوګه نه دی او څه شي چې نه ادراک کیږي نو ثابتېدی هم نه شي .

❑ **حرقیه** وایي : کافر چې کله اور ته ولاړ شي یو ځل به یې وسوځوي ، سوی سکور به شي په اور کې به بیا وي خو سوز به نه محسوسوي .

❑ **مخلوقیه** وایي : قران کریم مخلوق دی .

❑ فانیه وایي : جنت او جهنم به دواړه له منځه ځي او ځیني نور یې لا وایي چې جنت او جهنم بیخي پیدا شوي نه دي .

❑ **مغیریه** یې له پیغمبرانو څخه ټپ انکار کړی دی او وایي چې دوی یوازې حاکمان وو .

❑ **واقفیه** وایي : مونږ نه وایو چې قران مخلوق دی او نه وایو چې غیر مخلوق دی .

❑ **قبریه** له عذاب قبر او شفاعت څخه انکار کوي .

❑ **لفظیه** یې وایي چې زمونږ د قران لوستل مخلوق دي .

۲ - : **معتزله**(۱) : دوی د واصل بن عطاء او عمرو بن عبید پیروکار دي ، الله لره نومونه ثابتوي خو د جهمیو په څېر له صفتونو څخه په کلکه منکر دي او داسې انګېروي چې د صفتونو له ثبوت څخه د قدماؤ تعدد لازمیږي .

---

(۱) معتزله کلامي ( منطق او فلسفي اندازه ) ډله ده ، ددوهمې هجري پیړۍ په اوائلو او د اموي خلافت په اخرنیو مرحلو کې یې ظهور وکړ ، او په عباسي خلافت کې یې ډېر پرمختګ وکړ .
د عقیدې بنسټ یې عقل دی او په ډېرو نقلي دلائلو یې مقدم بولي ، هغوی اټکلوي چې سالم عقل او روغ فطرت د حلالو او حرامو ترمنځ خپله توپیر کولی شي ، په معتزله و کې خورا مشهور جاحظ او بل عباسي خلیفه مامون دی .

**دوی هم د جهمیو په څېر د اهل سنت والجماعت ضد عقاید لري چې بېلګې یې ستاسو مخې ته ږدو :**

**❒ معتزلو لومړی د یوې عقیدې لپاره یو بنسټ کېښود چې بېرته یې خپله مخالفین جوړ شول چې په سر کې یې پنځه اصول دي حتی که په پنځه ګوني اصولو څوک اعتراف ونه کړي معتزلي به نشي بلل کېدای :**

**۱ - : توحید - : موخه یې ترې د الله د وحدانیت ثبوت دی چې سارى او نظیر نه لري، له دې کبله یې ترې ټول صفتونه هم نفي کړي دي، معتزله د ټل لپاره د الله صفت په نفي او سلب باندې کوي لکه : الله نه جوهر دی ، نه عرض دی ، نه طویل دی نه عریض دی او ...ثبوتیه صفتونه یې د قدماؤ د تعدد په بهانه له الله څخه نفي کړي دي لکه علم ، قدرت ، هغوی وایي که مونږ الله لره علم یا قدرت یا ...ثابت کړو نو له الله پرته مو بل قدیم هم ثابت کړ او که د الله صفتونه د الله سره په قدَم کې شریک وبولو نو په الوهیت کې به هم د الله سره شریک شي نو له دې کبلهَ یې د توحید په نوم له الله څخه صفتونه نفي کړي دي .**

**۲ - : عدل - : له دې څخه یې موخه د عقل او حکمت په تقاضا د الله حکمونه قیاسول دي، له دې کبله یې ځینې امور باطل او نور ځینې یې قابل تنفیذ او عمل بللي دي، له دې څخه منکر دي چې الله پاک د بندګانو د افعالو خالق نه دی او وایي چې انسان د خیر او شر ټولو کارونو خالق په خپله دی، عقل چې څه شي ته ښه ووایي هغه به ښه وي او چې څه ناسم وبولي هغه به ښه نه وي، په ښو کارونو به نیکه بدله ورکول کیږي او په بدو به سزاګانې ورکول کیږي، دېته معتزله عدل وایي .**

**۳ - : د دوو منزلونو ترمنځ منزل - : د معتزلو په نیز دا اصل د فاسق حکم په دنیا کې بیانوي چې واصل بن عطا په کې د حسن بصري سره مخالفت درلود، معتزله عقیده لري چې فاسق په دنیا کې د خپل ایمان له کبله کافر نه دی خو ولې مسلمان یې هم نه بولي ځکه چې کبیره ګناه یې کړې ده، خو که توبه اوباسي مومن دی او که په خپل فسق ومړ په جهنم کې به د ټل لپاره وي .**

**۴ - : وعد او وعید - : له وعید څخه د معتزلو موخه دا ده چې په اخرت کې به الله د کبائرو مرتکبینو څخه شفاعت نه قبلوي او هرومرو به ورته داسې دوزخي سزا**

ورکړي چې بېرته به ترې نه راوځي ، دوی کافر او په اور کې به تل وي خو عذاب به یې د کفارو په نسبت اسان وي .

۵ - : **امر بالمعروف او نهي عن المنکر** - : دا اصل د معتزلو د لویو ګناهونو په مرتکبینو کې عقیدوی دریځ لا پسې څرګندوي ، د مجرد فسق په بسنټ معتزله په ټولواک خروج واجب ګڼي او پر ضد یې د نظامي برید قایل دي ، تر څو منکر ته زوال ورکړي.

نور عقاید هم لري چې ځینو ته ټول ژمن او په ځینو کې سره اختلاف لري چې ستاسو مخې ته یې بېلګې ږدو :

۶ - : د الله رؤیت نه په اخرت کې منکر دي ، په دې کې سره ټول یوه خوله دي .

۷ - : وایي چې قران مخلوق دی او د موسی علیه السلام سره الله خپلې خبرې په ونه کې اچولې وې او ونې ورسره خبرې کولې .

۸ - : په عرش باندې د الله پاک له استواء څخه انکار کوي ، او د استوی صفت په استولی تفسیروي .

۹ - : د کبائرو مرتکبینو اړوند د نبي کریم صلی الله علیه وسلم له شفاعت څخه منکر دي او دا ډول شفاعت باطل بولي .

۱۰ - : د اولیاؤ له کراماتو څخه ټپ انکار کوي او وایي که کرامت ومنو د ولي او نبي ترمنځ به توپیر ختم شي او دواړه به یو څېر شي .

**د معتزلوو ډلې ټپلې :**

که څه هم د لومړي ځل لپاره ډلو ټپلو سره محدود او معدود افکار او عقیدوی دریځونه لرل خو د وخت په تېرېدو سره په ډېرو ډلو ټپلو وویشل شي او دا د باطل نښه او علامه ده ، په یوه مسله کې سره جلاجلا اقوال ولري ، عقیدوی دریځونه یې بې شمېره شي ، زه هم په دې مقام کې زیار باسم چې د معتزلو ډلې ټپلې ، بنسټګر او ځینې اقوال یې ذکر کړم :

۱ - : **واصلیه** : دوی د ابوحذیفه واصل بن عطاء غزال ته چې د حسن بصري شاګرد و منسوبه ډله ده او د کبیرې مرتکب په مسله کې ورسره وران او بیا جلا شو .

۲ - : **هذیلیه** : دوی د معتزله وو سرکرده ابوهذیل حمدان بن الهذیل ته منسوب خلک

دي ، د اعتزال فکر يې له عثمان بن خالد او واصل بن عطاء څخه اخستی و ، ابوالهذيل عقيده لري چې د جنتيانو او دوزخيانو حرکات به پناه خوري او د تل لپاره به له حرکته ودريږي ، په دغې سکون کې به جنتيانو سره مزې چړچې او دوزخيانو سره دردونه او غمونه پاتې شي .

۳ - : **نظاميه** : دوی د ابراهيم بن يسار بن هانئ پيروکار طبقه خلک دي چې د معتزلو او فلاسفو کلام يې سره خلط کړی و ، له نورو معتزلو څخه دا منفرده عقيده لري چې:

● الله توان نه لري چې د دوزخيانو په عذاب کې زيادت راولي او نه ورڅخه عذاب کمولی شي ، او نه الله پاک د جنتيانو نعمتونه اضافه کولی شي او نه يې کمولی شي .

۴ - : **خابطيه اوحدثيه** : دوی د احمد بن خابط او حدثيه د فضل الحدثي پيروکار دي دوی هم د نظام تابعدار و ، د فلسفې مطالعې ته يې دومره وده ورکړه چې خپل ځانګړي مذهبي اقول يې ولرل ، د نمونې په توګه :

● په اخرت کې به مسيح عليه السلام د خلکو سره حساب کتاب کوي .

● د الله د رؤيت متعلق چې کوم نبوي حديث غږېدلی دی موخه ورڅه عقل فعال دی چې نړۍ يې د لومړي ځل لپاره ايجاد کړې ده ، خو ولې د عقل ورکونکی ( الله ) هېڅ څوک او هېڅکله نه شي ليدلی .

۵ - : **بشريه** : دوی د بشر بن معتمر چې د معتزلو لوی امام و پيرکاره طبقه ده ، ابوالهذيل معتزلي ته به يې منافق ويل ، په عقيده کې ځانګړی قول لري چې

● د ماشومانو په تعذيب الله توان لري خو که تعذيب ورکړي نو ظالم دی .

— **نعوذ بالله** —

۶ — مرداريه : دوی د عيسی بن صبيح مردار پلويان دي ، ده ته به يې د معتزلو راهب ويل ، عقيدوي ځانګړي اقوال يې په دې توګه دي :

● الله کولی شي چې ظلم زياتی او دروغ ووايي ، خو که ظلم دروغ ووايې نو الله به دروغجن اوظالم وي .

● او وايي چې انسان کولی شي د قران په څېر په فصاحت او بلاغت کې ، په نظم او ضبط کې دغه څېر کتاب راوړي .

● د قران په مخلوقيت ډېر ټينګ ولاړ و او په دې مسله کې به يې خپل مخالفين کفار ګڼل .

۷ - :**ثماميه** : دوی د ثمامة بن اشرس نميري پيروکار دي ، له نورو معتزلو څخه په دې ځانګړنه لري چې ټول يهودان ، نصرانيان ، مجوس ، مشرکان ، زنادقه او دهريه به د قيامت په ورځ خاورې شي ، د تېر په څېر به د مسلمانانو مړه شوي ماشومان بچي او ټول ځناور هم خاورې ايرې شي.

۹ - : **هشاميه** : دوی د هشام بن عمرو فوطي چې د قدر په نفي کې به يې ډېره مبالغه کوله پلويان دي ، هغه عقيده لرله چې د افعالو اضافت الله ته دروست نه دی که څه هم قران پرې غږېدلی وي ، لکه هغه وايي :

● الله د مسلمانانو زړونه سره نه شي يو کولی بلکې هغوی خپله سره يو کيږي که څه هم قران وايي چې ﴿ مَّا أَلَّفْتَ بَيْنَ قُلُوبِهِمْ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ أَلَّفَ بَيْنَهُمْ ﴾[1].

● همدا راز الله انسان ته ايمان نه شي محبوبولی لکه په دې ايت کې چې دي ﴿ حَبَّبَ إِلَيْكُمُ الْإِيمَانَ وَزَيَّنَهُ فِي قُلُوبِكُمْ ﴾[2] بلکې انسان يې ځان ته په خپل ځانګړي زيار محبوبوي .

● هغه وايي : جنت او دوزخ اوسمهال هېڅ شتون نه لري .

● نبوت د نيکو اعمالو بدله ده ، تر څو چې دنيا وي تر هغه به نبوت وي[3].

۳ - : **اشاعره** : دا چې اشاعره څوک دي ؟ او څه مذهب لري ؟ په لاندې کرښو کې يې درسره شريکوم :

لومړی : دوی ابوالحسن على بن اسمعيل اشعري ته منسوب خلک دي ، په اشعري رَحِمَهُ اللهُ باندې د عقيدې درې مرحلې تېرې شوي دي :

ا - : په لومړۍ مرحله کې ابو علي الجبائي سره چې د معتزلو لوی استاد و پاتې شو ،

---

(۱) سورت انفال : ( ٦٣ ) .

(۲) سورت حجرات : ( ٦ ) .

(۳) وګوره : المعتزلة وأصولهم الخمسة وموقف أهل السنة منها د ډاکټر عواد المعتق ليکنه (٨٤ )

د هغه ځانګړی شاګرد او د هغه باور وړ وګرځېد تر څلوېښت کاله په اعتزال کې پاتی شوی دی .

ب - : دوهمه مرحله یې د هغه مذهب ضد ده چې تېر عمر یې پرې قرباني کړی و ، پنځلس ورځې په خپل کور کې دننه پاتې شو او تر هغه یې استخاره کوله چې زړه ته یې ډاډ حاصل شو ، له اعتزال څخه یې برملا بیزاري اعلان کړه او د عبدالله بن سعید بن کلاّب په طریقه یې د ځان لپاره داسې لار رسم کړه چې نصوص به یې په کې د عقل سره سم تاویلول او د اوو ګونو صفتونو ثبوت یې په دې بنسټ وکړ چې د عقل سره سمون خوري ، نور خبري صفتونه یې په دې اټکل چې د عقل د احکامو سره سمون خوري په کې تاویل وکړ ، تر نن ورځ هم اشاعره په دې مذهب دي .

ج - : له تکییف ، تشبیه ، تعطیل ، تحریف ، تبدیل او تمثیل پرته الله لره ټول اسمونه او صفتونه ثابتول ، په دې مرحله کې یې د ( **الابانة عن اصول الدیانة**)په نوم کتاب هم وکښل ، بیا په ( ۳۲۴ هـ ) کال کې په بغداد کې وفات شو ، ددې ترڅنګ یې نورې لیکنې هم شته چې له اته شپېته څخه یې شمېر اوړي له سنت څخه په دفاع کې ولیکلې .

**عقاید او افکار** :

● د کلامي اصولو له مخې هغه قراني او نبوي نصوص چې عقل سره ټکر ونه لري په نورو دلیلونو لومړیتوب لري .

● په عقیده کې په خبر واحد استدلال نه کول او په نور سمعي مسائلو کې ترې کټه اخستل .

● د غزالي او جامي په څېر صوفیان یې عقیده لري چې په قراني نصوصو او نبوي حدیثونو باندې د دې صوفیانه قاعدې له مخې چې ( **حَدَّثَنِي قَلْبِي عَنْ رَبِّي** ) ذوق او قلبي کشف لومړیتوب لري .

● اشاعره توحید داسې تفصیلوي چې الله خالق او نوښت قادر دی ، له دې کبله له الوهیت پرته د الله په ربوبیت قایل دي چې تر څنګ یې زیاتره صفتونه هم تاویلوي .

: اشاعره د ټولو خبري صفتونو په تاویل عقیده لري خو ولې متاخرین یې د تنزیه په

موخه د معانیو تفویض هم الله ته کوي ، د اسماؤ او صفاتو په ایتونو کې نه بلکې تاویل یې دومره وسیع بللی دی چې د ایمان اړوند زیاترو نصوصو کې یې هم تاویل کړی دی .

● اشاعره د مرجئو پر ضد چې د ایمان صحت لپاره له عمل پرته د شهادت په کلمې بسنه کوي او د جهمیو پر ضد چې ایمان یواځې تصدیق بولي ترمنځ عقیده لري .

● د تکفیر په مسله کې اشاعره سرګردانه دي ، کله وایي هېڅ څوک کافر نه شي بلل کېدای او کله وایي چې کافر هغه څوک دی چې مونږ ورته کافر ووایو .

● اشاعره عقیده لري چې قران کریم د الله حقیقي کلام نه دی بلکې د الله نفسي کلام دی ، د قران په شمول ټول اسماني کتابونه مخلوق دي .

● اشاعره هم د معتزلو په څېر د نبوت د تصدیق لپاره په معجزاتو د بسني عقیده لري ، خوولې اهل السنت والجماعت عقیده لري چې الله انبیاؤ ته ډېر دلائل ورکوي چې له جملې څخه یې معجزات هم دي .

● اشاعره عقیده لري چې د الله په افعالو کې هېڅ حکمت نشته .

● د برزخ ، اخرت ، حشر او نشر او میزان کې اشاعره د اهل السنت والجماعت په څېر دي ، صراط ، شفاعت ، جنت او جهنم اړوند عقاید یې د اهل السنت والجماعت سره موافق دي .

۴ – : ماتریدیت څنګه منځ ته راغی ؟

ماتریدیان ابومنصور محمد بن محمد بن محمود ماتریدي ته نسبت دی ، ماتریدي په ماوراء النهر کې د سمرقند اړوند سیمه ده .

ماتریدیه هم د نور کلامي ډلو ټپلو په څېر په څه شمېر مرحلو تېره شوې ده ، دوي په ماتریدیت هله وپېژندل شول چې بنسټپال ابومنصور ماتریدي ومړ .

په ماتردیت لاندې څلور مراحل تېر شوي دي چې ستاسو پام راړول ورته اړین بولو:

لومړۍ مرحله :

د تاسیس مرحله : دې مرحلې له ( ۳۰۰هـ ) څخه پېل واخست ، په دې مرحله کې ماتریدیت د اعتزال سره په سختو مناظرو او بې سارې دلیل بازۍ بوخت و .

**دوهمه مرحله :**

د تکوین مرحله : دا مرحله تر ( ٥٠٠ ) کاله پورې وغځېده ، په دې مرحله کې د ابو منصور ماتریدي شاګردانو د مذهب د نشر او اشاعت زیار وویست ، په فروعو کې دامام ابوحنیفه رَحِمَهُ اللهُ په مذهب کې ډېرې لیکنې هم وکړې خو ولې په عقایدو کې د ابو منصور کلک پلویان وو .

**دریمه مرحله :**

دا مرحله تقریبا چې د لومړۍ مرحلې بشپړتیا وه چې تر ( ٧٠٠ هـ ) کال وغځېده .

**څلورمه مرحله :**

دا مرحله په ماتریدي عقیدې کې د لیکنې او د مستقل مذهب په صورت کې د راڅرګندېدو مرحله وه ، د عقیدې په تاسیس او د ماتریدیت په مراحلو کې دا تر هرې مرحلې ودانه مرحله وه .

**پنځمه مرحله :**

د ماتریدیت د نشرو اشاعت مرحله وه ، دا مرحله نژدې ( ١٣٠٠ هـ ) کال ته وغځېده ، د ماتریدیت په نشر او اشاعت کې دا مرحله له مخکې څخه کمه نه وه ، د عثماني خلافت ټولواکې طبقې له پلوه ورته تاییدات حاصل وو ، څومره چې به عثماني خلافت وده کوله او قلمرو به یې زیاتېده همره به د ماتریدیت عقیدې پرمختګ کو ، له دې کبله د ځمکې ختیځ او لویدیځ ، عربي نړۍ ، د عجمو ښارونه او کلي کورونه ، هند او ترک ، فارس او روم ټولې منطقې یې ونیولې .

**د ماتریدیانو عقید :**

١ - : له اخستنځای په اعتبار : ماتریدیانو دیني اصول ( الهیات او عقلیات ) ته تقسیم کړي دي ، په دې باب کې ماتریدیان عقیده لري چې په عقل ثابت اړخونو کې به نقل د عقل تابع وي چې یو یې له جملې څخه توحید الاسماء والصفات هم دی .

٢ - : شرعیات یا سمعیات : ماتریدیان هغه امور شرعیات بولي چې عقل یې امکانیت نفیاً او ثبوتاً کلک تاییدوي، په دې امورو کې د عقل لپاره هېڅ مجال نشته لکه : پیغمبري ، عذاب قبر ، اخروي امور ، هېره دې نه وي چې ځینې ماتریدیان

**پيغمبري له عقلياتو څخه شميري .**
**دين عقليات او سمعياتو ته تقسيمول اسلامي نه بلکې باطله عقيده او فلسفي اصولو ته تکيه لري ، موخه يې ترې دا ده چې ديني نصوص د عقل سره تعارض لري ، دا چې د دواړو خواو ترمنځ وسطيت ولټوي نو تاويل او تفويض ته مجبور شول ، خو ولې اهل السنت د دې تقسيم کلک مخالف دي او وايي چې اسلامي شريعت هېڅکله د سليم عقل سره ټکراو نه لري .**
**۳ - : ماتريديان عقيده لري چې د اشياؤ د تحسين او تقبيح لپاره شريعت نه بلکې عقليت بسنه کوي ، له دې کبله سره خپل منځ کې اختلاف لري چې ايا د الله په احکامو کې عقل د ښو او بدو ادراک کولای شي ؟ ځينو يې ويلي دي چې بنده ته سزا د خپل ناوړه اعمالو په سبب ورکول کيږي ، که څه هم الله ورته استازي نه وو راستولي .. خو ولې نور يې ضد خبره کوي .**
**۴ - : د نورو کلامي ډلو په څېر ماتريديه عقيده لري چې په قران او حديث او عربي کې مجاز شته ، دا خبره په دې خاطر کوي چې د تجسيم او تشبيه په بهانه د الله د نومونو صفتونو د تاويل لپاره ځان ته موقعه مساعده کړي .**
**۵ - : د توحيد مطلب د ماتريديه په نېز دا دی چې الله په خپل ذات کې يو دی ، په خپلو نومونو او صفتونو کې هېڅ ساری نه لري ، په افعالو او پېدائښت کې يک تنها دی شريک نه لري،د بېلګې په توګه هغوی وايي : په نوښتونو الله توان لري ، د ثبوت لپاره يې نفس د معتزله او جهميو منځ ته راوړي عقلي مقاييس فلسفي دليلونه ته تکيه وهلې ده لکه جوهر ، عرض او.... چې لږ وروسته يې تفصيل راروان دی ، الحمدلله ټول استدلالات يې ابوالحسن اشعري ، ابن رشد الحفيد په ( مناهج الادلة ) او شيخ الاسلام ابن تيميه په ( درء تعارض العقل والنقل ) کې په منطقي او قابل قناعت اسلوب جواب کړي دي .**

**۶ - : که څه هم دالله نومونو په ثبوت کې يې عقيده اهل السنت والجماعت ته ورته ده خو ولې په ځينو داسې نومونو يې الله نومولی دی چې اهل السنت ورسره په کې اختلاف لري ، لکه : صانع ، قديم ، ذات .... په دې معنی چې د الله د نومونو او د اخبارو**

په باب کې يې هېڅ توپير نه دی کړی .

۷ - : که څه هم ماتريديان خپل منځ کې سره په کې اختلاف لري خو په صفاتو کې الله لره يوائې د اتوو صفتونو په ثبوت قايل دي : حياة ، قدرت ، علم ، اراده ، سمع ، بصر ، کلام ، تکوين ، د الله ټول افعال د تکوين صفت تابع دي ، خو ټول خبري صفتونه که ذاتي وي او که فعلي وي خبري صفتونه دي او د عقلياتو سره هېڅ اړيکه نه لري ، له دې کبله يې په نفي قايل دي .
خو ولې اهل السنت والجماعت د الله په صفتونو کې هغه عقيده لري چې کومه عقيده د الله په اسماؤ کې لري ، اسماء او صفات دواړه توقيفي کېږي او له تشبيه ، تعطيل ،تکيف او تحريف پرته پرې د دې ايت په رڼا کې کلک ايمان لري چې ﴿ لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ وَهُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ ﴾ (۱)
۸ - : ماتريديان عقيده لري چې قرانکريم د الله حقيقي کلام نه دی ، بلکې قران د الله نفسي کلام دی او د هغه له کلام څخه تعبير دی .
دا هم د اهل السنت والجماعت ضد عقيده ده هېڅ قراني ايت او نبوي حديث ته استناد نه لري .
۹ - : ماتريديه عقيده لري چې ايمان يوائې د زړه تصديق دی ، که څه هم ځينو يې ورسره د ژبې اقرار ټل کړی دی او نه هم د ايمان په زيادت او نقصان قايل دي ، له دې کبله يې په ايمان کې استثناء ( ان شاء الله ويل لکه : زه ان شاء الله مسلمان يم ) حرام کڼلې ده ، د مرجئو په څېر اسلام او ايمان په يوه معنی پېژني چې هېڅ توپير نه لري .
۱۰ - : په سمعياتو باندې ايمان لرلو کې ماتريديان د اهل السنت والجماعت په څېر عقيده لري لکه : برزخ ، اخروي امور ، حشر او نشر ، ميزان ، صراط ، شفاعت ، جنت او...
۱۱ - : ماتريديان عقيده لري چې په اخرت کې به الله ليدل کيږي خو له جهت او

---

(۱) سورت شورى : ( ۱۱ ) .

**مقابلې نه په ټپه منکر دي .**

۱۲ - : **د اهل السنت والجماعت په څېر ماتريديه تقدير کې عقيده لري چې په نړۍ کې هر څه د الله په مشيئت او اراده کيږي ، د خير او شر په ټولو کارونو کې انسان ته اختيار ورکړل شوی دی نو له دې کبله ورته جزا او سزا هم ورکول کيږي .**

  

## د الله له صفاتو څخه د منکر حکم

**په دې مسئله کې باید څېړنیزه کره کتنه وشي .**
**باید وویل شي : د الله پاک له ثابتو صفتونو څخه چې څوک انکار کوي له دریو حالتونو څخه به خالي نه وي :**

**لومړی : که څوک پوهیږي چې صفت په قاطع نص ثابت دی او په نفي ورسره هېڅ دلیل یا داسې شبه چې د نص مفهوم او معنی تغیروي نه وي ، یوازې عناد نیولی وي ، موخه یې فساد وي، له الله څخه د انکار په رنځ اخته وي ، له حقانیت وروسته هم د رسول په عصیان کې مبتلا وي نو دا سړی کافر دی ځکه چې د الله او د هغه د رسول تکذیب یې وکړ .**

**دوهم : که څوک په خیر خواهۍ او دینیت باندې معروف و ، رښتوني لهجه او د حق په پلوې خلکو پېژنده ، خو په نصوصو د جهل له امله ، یا یې د نص په صحیح مفهوم مازغه نه خلاصېدل ، نو دا سړی معذور دی ، الله به یې وبښي ، ځکه د ده نفي په تاویل بنا ده ، د نصوصو سره په قصد او عصیان او سرغړوني بنا نه ده .**

**دریم : که څوک د صفاتو په ثبوت او نفي د خپل خواهش پیروکار و ، ټول مذهب یې په لاعلمیت بنا و ، خو ولې د اسلامي نصوصو څخه یې سرغړونه موخه نه وي ، دا سړی ګناهګار دی او په خپلې کړنې فاسق بلل کیږي .**

  

## د تمثيل لغوي معنى

دتمثيل خپله لغوي معنى تسويه او ( برابرول ) ده .

ابن منظورپه لسان العرب کې وايي :

( مِثْلٌ ) کلمه د تسوي معنى او مفهوم افاده کوي مګر دومره ده چې تسويه او تمثيل سره پخپل منځ کې فرق لري .

ځکه تساوي هله شتون لري چې دوه شيان سره پخپل منځ کې په مقدار او اندازه کې توپير و نه خوري او مماثله په دوو متفقه شيانو کې راځي[١] .

په ترتيب القاموس المحيط کې وايي : عرب وايي : ( وَمَثَّلَ لَهُ تَمْثِيلاً ) يعني هغه يې داسې متصور کړ لکه ښکاره چې ورته ګوري[٢] .

اسمعيل بن حماد الجوهري وايي : ( مَثَّلَهُ تَمْثِيلاً ) يعني په کتابت او نورو وسائلو يې د هغه مثال متصور کړ[٣] .

  

(١) لسان العرب : ( ١١ / ٦١ ) چاپ : دارالفکر بيروت .

(٢) ترتيب القاموس المحيط : ( ٤ / ٢٠٣ ) چاپ : دارالمعرفة بيروت ١٣٩٩هـ ١٩٧٩ م .

(٣) الصحاح تاج اللغة وصحاح العربية : ( ٥ / ١٨١٦ ) چاپ :دارلعلم للملايين .١٣٧٦هـ ١٩٥٦ م .

## د تمثیل اصطلاحي معنی

د الله پاک سره د هغه په صفتونو کې مماثل پیدا کول ، او د تمثیل د قراني او نبوي نصوصو له مخې صریح کفر دی او د الله پاک د دې قول تکذیب دی چې : ﴿ لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ وَهُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ ﴾ [۱]

او له تمثیل څخه نقص هم لازمیږی په دې معنی چې د الله پاک د کامل ذات مشابهت ورپکې د ناقص مخلوق سره راځي .

## د تشبیه او تمثیل ترمنځ توپیر

د تشبیه او تمثیل ترمنځ توپیر دا دی چې په تمثیل کې هر اړخیز مساوات شرط دی چې بغیر له مساوات تمثیل په تمثیل نه شي نومول کېدای بالعکس په تشبیه کې مساوات له هر اړخه نه موجودیږي .

ځکه خو الله پاک ﴿ مِثْل ﴾ له ځان څخه په دې قول کې نفي کړی دی چې : ﴿ لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ وَهُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ ﴾ [۲]

  

---

(۱) سورت شوری : ( ۱۱ ) .

(۲) الانتقاد الرجیح بشرح الاعتقاد الصحیح : ( ۵۸ ) .

## د تعطيل لغوي معنى

تعطيل عربي لفظ دی د خالي او خو شې پرېښودو په معنى راځي ، د عربي د لغت قاموس المحيط نوم کتاب کې وايي :

( تَعَطّلَتِ الْمَرأَةُ ) ښځه خالي شوه ، يعنې ګاڼه او زېورات پرې نشته او د تعطيل معنى تفريغ او خوشې پرېښودل دي [١].

ابن منظورپه لسان العرب کې وايي :

( عَطّلَتِ الْمَرأَةُ ، تَعطّلَ عَطلاً وَ عُطُولاً وَ تَعطّلَتِ الْمَرأةُ اِذَا لَمْ يَكُنْ عَلَيْهَا حِلْيٌ وَ لَمْ تَلْبَسْ الزِيْنَةَ ) [٢] .

ښځه خالي شوه يعنې چې کله ورباندې ګاڼه او زېورات نه وي ، او يا هم د ښکلا ، زيب و زينت لباس وانه اچوي.

له تېرې څېړنې څخه جوته شوه چې د تعطيل معنى تفريغ او خلو ده په دې معنى د الله پاک دا قول هم ښکار دلالت کوي چې ( وَبِئْرٍ مُعَطّلَةٍ وَ قَصْرٍ مّشِيْدٍ ) [٣]

يعنې : هغه کوهی چې څوک ترې اوبه نه څښي بلکې خوشې پرېښودل شوی وي .

## د تعطيل اصطلاحي معنى

د عقيدې په اصطلاح کې تعطيل له الله پاک څخه په قران او صحيحو حديثونو کې ثابت صفتونه نفي کول او د ذات پورې تړلې صفتونو نه انکار کولو ته وايي [٤]

خو دومره ده چې تعطيل او تحريف سره پخپل منځ کې توپير لری ، په دې معنى چې

---

(١) القاموس المحيط : ( ٤ / ١٧ ) چاپ : دارالفكر بيروت : ١٤٠٣هـ١٩٨٣م ـ

(٢) لسان العرب : ( ١١ / ٤٥٣ ) چاپ : دارالفكر .

(٣) سورت حج : ( ٤٥ ) .

(٤) الانتقاد الرجيح بشرح الاعتقاد الصحيح : ( ٥٧ ) .

تعطیل هغه ته ویل کیږي چې د لفظ څخه خپله مطلوبه معنی چې قران کریم او یا نبوي حدیث پرې ښکاره دلالت کوي نفي کړي.

او تحریف نص په باطله معنی تفسیرولو ته ویل کیږي .

جوته شوه چې د دواړو ترمنځ عموم او خصوص دی ، هر تحریف تعطیل دی خو هر تعطیل تحریف نه دی(١).

## د تحریف لغوي معنی

تحریف د ( فَعّلَ يُفَعِّلُ تَفْعِيْل ) باب نه مصدر او د تفعیل په وزن دی او د تبدیل او تغییر معنی افاده کوي .

ازهري وايي : لیث ویلي دي چې : په قران کریم کې تحریف دې ته ویل کیږي چې کلمات له خپلو معناګانو څخه په نورو معناګانو تفسیر شي(٢).

یعنې قراني او یا نبوي کلماتو ته له خپل ځایه بدلون ورکول په تغییر نومول کیږي .

## د تحریف اصطلاحي معنی

تحریف د عقیدې په اصطلاح کې :

دېته ویل کیږي چې نص په داسې معنی تفسیر شي چې دغه نص پرې هېڅ دلالت نه کوي (٣).

د الله پاک د نومونو او ثابتو صفتونو اړوند دغې ټولو اصطلاحاتو ته الحاد او کجروي ویل کیږي ځکه چې دغه مصطلحات د قران کریم د صریحو نصوصو سره ښکاره تضاد او منافات لري .

---

(١) الانتقاد الرجيح بشرح الاعتقاد الصحيح : ٥٨ .

(٢) تهذيب اللغة : ٥ / ١٤ . لسان العرب : ٩ / ٤٣.

(٣) الانتقاد الرجيح بشرح الاعتقاد الصحيح : ٨٥ .

## د متکلمینو عقیدوي اصطلاحات او د هغې مفهوم

د عقیدې په کتابونو کې عموما او د کلامي او فلسفي خلکو په کتابونو کې خصوصا د عقیدې باب کې ځینې مجمل کلمات کارول کیږي چې له کبله یې ځینې پوښتنې راولاړیږي چې :

ا - : له دغې کلماتو څخه مقصد څه دی ؟

ب - : ولې مجمل ذکر کیږي دي ؟

ج - : له ذکر څخه یې څه مراد دی ؟

د - : ولې د عقیدې په کتابونو کې کارول کیږي ؟

هـ - :ایا کوم قراني ایت یا صحیح او صریح نبوي حدیث یې ملاتړ کوي ؟

و - : له دغې کلماتو څخه د اهل السنت والجماعت موقف څه دی ؟

په راروانو کرښو به ټولو مذکوره پوښتنو ته په تفصیلي توګه توضیحي او تشریحي ځوابونه ووایو، ان شاءالله .

ا - : د دغې اصطلاحاتو استعمال د اهل التعطیل پیشه ده ، یا په بل عبارت : دا هغه اصطلاحات دي چې د عقیدي په باب کې یې اهل الکلام استعمالوي .

ب - : ځکه مجمل دي چې د حق او باطل دواړو احتمال لري ، د سمو او ناسمو معناګانو ترمنځ شراکت لري ، یا مجمل ورته ځکه ویل کیږي چې تر څو مُجْمِل تفصیل نه وي ورکړی تر هغه یې مفهوم نه واضح کیږي .

ج - : اهل التعطیل یې په دې موخه استعمالوي ترڅو له عیب څخه د تنزیه په نوم د الله صفتونو نفي ته پرې لار جوړه کړي .

د - : د عقیدې په کتابونو کې یې ځکه ذکر کوي ترڅو له اهل السنت والجماعت څخه خپل شرمونه په دغې مصطلحاتو پټ او پناه کړي .

هـ - : دغه اصطلاحات نه په قران او نه هم په حدیثو کې راغلي دي .

و - : له دغې اصطلاحاتو څخه د اهل السنت والجماعت عقیدوي دریځ توقف دی ، دا چې په قران کریم یا نبوي حدیث کې یې نفي یا اثبات نه دی راغلی نو نه یې ثابتوي او نه یې نفي کوي .

خو ولې د معنی له نګاه هغوی تفصیل غواړي ، که د اهل التعطیل موخه ترې د الله د صفتونو تردید او نفي وي ، نه یې مني او که معنی یې ترې داسې وي چې د الله د جلالیت او عظمت ضد نه وه بیا یې قبلوي ، او هلته د مقام مناسب لفظ استعمالوي .

دغه اصطلاحات د شرحې او تفصیل سره ستاسو مخې ته ږدو :

✍ : جهت -: دا مجمل لفظ دی او اهل تعطیل یې ډېر استعمالوي ، تفصیل یې په دې توګه دی :

❍ : د ( جهة ) لغوي معنی : په لغت کې یې اطلاق په هر مخامخ شي کیږي ، لارې ته هم ویل کیږي ، او هر شی چې ستا مخې ته راځي ورته په عربۍ کې ( جهت ) ویل کیږي[۱] .

❍ : له استعمال څخه یې موخه دا ده چې د الله د ( علو ) صفت پرې نفي کړي .

❍ : د دې اصطلاح اړوند عقیدوي کره کتنې وایي چې د الله په حق کې یې استعمال بدعت دی ، په دې اصطلاح نه کوم قراني ایت او نه هم نبوي کوم صحیح او صریح حدیث دلالت کوي ، او نه یې له سلفو صالحینو څخه ثبوت شتون لري .

د تېرې څېړنې څخه جوته شوه چې جهت اطلاق اثباتاً او نفیا په الله پاک دروست نه ،له تفصیل پرته په کې خبرې کول ښه کار نه دی ځکه حق اوباطل دواړه اړخونه لري.

که له جهت څخه هغوی ( اسفل ) اخلي نو له الله څخه منتفي او ممتنع دی ، الله پاک عظیم ذات دي هېڅ شي پرې احاطه نه شي کولی بلکې هغه په هر څه محیط دی .

او که له ( جهت ) څخه یې موخه دا وه چې الله په هر اړخ کې دی ، د مخلوق سره هم او په هر ځای کې دی نو دا هم د الله په حق کې ممتنع دي .

خو که له ( جهت ) څخه یې موخه د الله د ( علو ) د صفت تعطیل و ، چې الله په هېڅ جهت کې نه دی ، نه په نړۍ کې دی او نه له نړۍ بهر دی ، نه د نړۍ پسې متصل دی او نه ورڅخه منفصل دی ، نه پورته شته او نه ښکته ، نو دا هم د الله په حق کې ممتنع دي ، ځکه دا له الله څخه بیخي انکار دی .

خو که له ( جهت ) څخه یې موخه دا وه چې الله پاک د خپل شان سره لائق بره دی ،

---
(۱) لسان العرب : ( ۱۳ / ۵۵۵ - ۵٦۰ ) .

**هېڅ شی پرې احاطه نه لري ، او نه هم خپل کوم مخلوق ته محتاج دی نو دا صحیح معنی ده او قراني ایتونه او نبوي حدیثونه پرې دلالت کوي[۱] .**

✍ : **حد** - : **حد هم مجمل لفظ دی معطله یې استعمال زیات کوي ، کره کتنه یې ستاسو مخې ته ړدو :**

❍ : **حد په لغت کې ، فاصل ، منع او ددو شیانو ترمنځ حائل ته ویل کیږي[۲] .**

❍ : **له استعمال څخه یې د معطلو موخه دا ده چې پر عرش پرې د الله د استواء صفت نفي کړي .**

❍ : **په دې دلیل چې که مونږ الله لره استواء ثابته کړو نو الله به محدود شي ، که انسان په خپلې سورلۍ استواء وکړي معلومه ده چې په معین مکان پورې محدود شو ، په دې خاطر چې له مخلوقاتو څخه یې تنزیه وشي نو الله له حد څخه منزه بولي .**

❍ : **اهل السنت یې شبهه داسې جوابوي چې د ( حد ) کلمه په قران او حدیث کې بیخي راغلې نه ده ، او نه د سلفو صالحینو په کلام کې شتون لري ، معلومه شوه چې (حد ) د مبتدعینو اصطلاح ده .**

**خو ولې د معنی په لحاظ مزید وایي : که له ( حد ) څخه ستاسو موخه دا وي چې الله پاک د مخلوق سره د ذات په اعتبار نه دی ، نوپه دې نو په دې معنی کې هېڅ دیني او عقیدوي اشکال نشته سمه دمه د شریعت موافق معنی ده .**

**خو که موخه مو ورڅخه دا وي چې له استواء څخه په الله د عرش احاطه راځي نو له دې کبله مو ورڅخه استواء نفي کړه نو دا باطله معنی ده او دیني احکام یې ضد دي ، ځکه الله په عرش مستوي دی او هغه له عرش او ټولو مخلوقاتو څخه لوی دی[۳] .**

---

(۱) شرح العقيدة الطحاوية : ( ۲۲۱ ) التحفة المهدية شرح الرسالة التدمرية : ( ۱۶۶– ۱۷۱ )

(۲) معجم مفردات ألفاظ القرآن د راغب اصفهاني لیکنه : ( ۱۰۸ ) . المصباح المنير د فيومي لیکنه : ( ۶۸ ).

(۳) شرح عقيدة الطحاوية : ( ۲۱۹ ) . شرح العقيدة الواسطية د عثیمین لیکنه (۳۷۶ ، ۳۷۹ ، ۳۸۰)

✍ : **اعراض** - : دا هم مجمل لفظ دی او د عقیدې په باب کې یې معطله استعمالوي مثلا هغوی وایي ( **سُبْحَانَ مَنْ تَنَزَّهَ عَنِ الْأَعْرَاضِ وَ الْأَغْرَاضِ وَ الْأَبْعَاضِ** ) خو دا چې ( اعراض ) څخه یې موخه څه ده ، پاتې کره معلومات ستاسو مخې ته ږدو :

ا – **اعراض** په لغت کې د عَرَض جمع ده ، او عرض هر هغه شي ته ویل کیږي چې د بل څه پورې لزوم نه لري ، یا ثابت شی نه وي ، یا عَرَض هغه ته ویل کیږي چې له څه شي جلا کېدای نه شي ، لکه خندا ، ژړا ، خوشحالي او غم ، دې ته عوارض ویل کیږي ، ځي او راځي په خپل ځای باندې هېڅ ثبوت نه لري [1].

ب - : د متکلمینو په اصطلاح کې عرض دې ته ویل کیږي په شته کېدو کې خپله استقلال نه لري ، یا په بل عبارت چې له محل پرته په نورو ځایونو کې یې شتون ناشوني وي[2] .

راغب اصفهاني وایي : عرض دې ته ویل کیږي چې په خپل ځای ثابت نه پاتې کیږي ، متکلمینو استعارةً په ټولو هغو ځایونو کې استعمال کړی دی چې له خپل اصل ( جوهر ) پرته ثابت نه پاتې کیږي بلکې ځي راځي لکه رنګ او د خواړو مزه[3].

ج - : له دې څخه د متکلمینو موخه څه ده چې الله له اعراضو څخه پاک دی ؟

له دې څخه د اهل التعطیل موخه دا ده چې له الله څخه ټول صفتونه نفي کړي .

د - : شبهه یې دا ده چې اعراض په اجسامو کې راځي ، او جسم له یو بله سره ورته والی لري ، د صفتونو ثبوت دا معنی ورکوي چې الله جسم دی ، او جسم تمثیل دی ، او تمثیل کفر او بې لاري ده نو له دې کبله یې ټول صفات ورڅخه نفي کړي دي .

هـ - : د اهل الکلام په دې شبهه رد : له څو وجوهاتو څخه دا شبهه بې ځایه ده :

۱ - : د اعراض کلمه په قران کریم یا سنت کې نفیا او اثباتا بیخي وارده نه ده ، په داسې کلماتو کې علماء توقف کوي ، نه مونږ اعراض ثابتوو او نه تر انکار کوو .

---

(۱) التعریفات د جرجاني : ( ۱۵۳– ۱۵٤) .

(۲) ( المصباح المنیر ) د فیومي لیکنه : ( ۳۰۹ ) .

(۳) معجم مفردات الفاظ القرآن د راغب الأصفهاني : ( ۳٤۲ ) .

د معنی په لحاظ به ورڅخه پوښتو چې ستا موخه له دې کلماتو څخه څه ده ؟ که ستاسو موخه دا وي چې دغه اوصاف د الله په حق کې نقص دی لکه : حزن ، ندامت ، مرض ، خوف ، نو سمه ده ، ځکه دا نقص صفات دی ځکه یې نفي اړینه ده ، نه په دې خاطر چې اعراض دي .

او که موخه مو ورڅخه دا وي چې له الله پاک څخه هغه صفتونه نفي کړئ چې قراني ایتونه او نبوي حدیثونه پرې غږیدلي دي لکه : غضب ، فرح ، رضا او داسې نور په دې دلیل چې دا اعراض دي ، نو دا عقیده مو بې بنسټه ده هېڅ شرعي دلیل ته استناد نه لري ، او نه د دغې صفتونو له اثبات څخه هغه څه لازمیږي چې تاسو یې عقیده لرئ .

۲ - : الهي اوصاف ټول اعراض نه دي ، بلکې ځنې یې اعراض دي لکه : فرح ، غضب او ځنې نور یې اعراض نه دي لکه : لاس ، مخ ، قدم ، ساق ...بلکې د ذات سره لازمي صفتونه دي چې هېڅکله ورڅخه نه جلا کیږي .

۳ - : ( اعراض له جسم پرته ناشوني دي ) ستاسو دا عقیده باطله ده ، اعراض له جسم پرته هم راتلای شي لکه عربی کې مونږ وایو ( لَيْلٌ طَوِيْلٌ ) نو طویل د لیل صفت دی ، او لیل جسم نه دی ، همدا راز : ( حَرٌّ شَدِيْدٌ، مَرَضٌ مُؤْلِمٌ، بَرِدٌ قَارِسٌ ) او داسې نور ....

۴ - : ستاسو دا خبره چې اجسام سره یو بل ته ورته والی لري ، دا هم بې بنسټه خبره ده ، اجسام هېڅکله سره خپل منځ کې نه ذاتاً اونه وصفاً مشابهت لري ، که ځېر شو له اوبښ څخه مېږی توپیر لري ، په اوزانو کې قیراط له قنطار څخه فرق لري ، په حس کې ځیګ له پوس او کلک له نرم سره فرق لري .

۵ - : د جسم کلمه د متکلمینو بدعت دی ، د مجملو الفاظو په قاعده کې راځي ، که د صفاتو له ثبوت څخه ترې جسم لازمیږي نو مونږ ته ترې څه تلکیف دی ؟؟ که له جسم څخه مو موخه دا وي چې خپله مستقل دی او صفات لري ، نو دا حقه خبره ده ، ځکه مونږ د الله په داسې ذات ایمان لرو چې له تشبیه او تمثیل پرته لائق صفتونه لري ، بیا نو له جسم څخه دا معنی اخستل سمه ده .

خو که موخه دې دا وي چې جسم له غړو ، غوښو ، وینو اوړګونو څخه ترکیب شوی

**او یوه برخه یې بلې ته اړتیا لري ، که یوه برخه یې د بلې اړتیاوې پوره نه کړي جسدي نظام په ټپه ودرېږي ، نو داسې جسم نه مونږ الله لره ثابتوو او نه مو ثابت کړی دی ، بیا نو له دې عقیدې څخه لازمېږي چې الله حادث دی او دا مستحیل دي چې الله دې حادث وي .**

**✍ : ابعاض ، اعضاء ، ارکان ، جوارح هم له مجملو کلماتو څخه دي ، سمې او ناسمې دواړه معناګانې لري ، لاندېنۍ څېړنه کې تفصیل ستاسو مخې ته ږدو :**

**○ ابعاض د بعض جمع ده چې د برخې معنی ورکوي[1]**

**○ ارکان د رکن جمع ده ، او رکن د یوشي هغه پیاوړي اړخ ته ویل کیږي چې انسان ترې مطمئن وي .**

**○ اجزاء د جزء جمع ده او د برخې او حصې معنی ورکوي چې شیان ترې ترکیب کېدای شي .**

**○ جوارح د جارحة جمع ده ، او هغه سپو او نورو حیواناتو ویل کیږي چې د ښکار لپاره یې تربیه او کارول کیږي ، جارحه خو ورته یا ځکه ویل کیږي چې ټپونه پیدا کوي او یا لاس ته راړوني لري ، د انساني بدن غړو ته جوارح ځکه ویل کیږي چې اعمال پرې کېدای شي او لاس ته راوړني لري، د دې په څېر نور کلمات هم شته لکه ، اعضاء ، ادوات وغیره داسې نور ....**

**○: د اهل التعطیل موخه یې له استعمال څخه څه ده ؟**

**موخه یې ورځخه دا ده چې د الله رب کائنات هغه ذاتي صفتونه چې په قراني ایتونو او نبوي حدیثونو غوځ ثبوت لري لکه لاس ، مخ ، ساق ، قدم ، عین ... نفي کړي[2].**

**○: دوی ولې له الله څخه صفتونه نفي کوي ؟**

**دوی له الله څخه مذکور او نور صفتونه په دې خاطر نفي کوي چې مخلوق ابعاض ، اعضاء ، ارکان او اجزاء لري ، دوی وایي که مونږ الله لره دغه ذاتي صفتونه ثابت کړل**

---

(۱) معجم مفردات ألفاظ القرآن : ( ۵۰ ، ۸۸ ، ۹۰ ، ۲۰۸ ) . التعریفات : ( ۷۸ ، ۱۱۷ ) د جرجاني لیکنه .

(۲) شرح العقیدة الطحاویة : ( ۲۱۹ ) .

**نو د مخلوق سره به ترې تشبیه راشي ، نو تمثیل او تجسیم به لازمي شي ، چونکه الله د مخلوق په څېر نه دی نو صفتونه یې هم نه شو منلی ، په دې خاطر چې خلک یې بطلان ونه پېژني د دغې کلماتو او اصطلاحاتو نوښت یې وکړ .**

**○: اهل السنت والجماعت یې شبهه داسې جوابوي چې که څه هم دغه صفتونه مخلوق ته تش په نوم کې ورته والی لري خو مونږ یې د مخلوق سره په تشبیه او تمثیل هېڅ عقیده نه لرو ، د صفتونو د کیفیت عقیده د ذات په کیفیت پورې تړلې ده ، دا چې د ذات کیفیت مونږ نه پېژنو د صفتونو کیفیت یې هم مونږ نه پېژنو ، چونکه الله د ځان لپاره ثابت کړي دي او د کیفیت اړوند یې هېڅ نه دي ویلي ، مونږ ورلره صفتونه ثابتوو او د کیفیت اړوند یې هېڅ نه وایو بلکې غلي پاتي کیږو [(۱)].**

✍ : **اغراض : دا هم متکلمینو راوړې کلمه ده چې ځینې تفصیل یې تاسو ته وړاندې کوو :**

**○: اغراض د غرض جمع ده ، او غرض د موخې او هدف معنی ورکوي ،**

**په لغت کې غرض اړتیا ، موخه او مقصد ته ویل کیږي [(۲)].**

**○: د متکلمینو په اصطلاح کې د غرض معنی : غرض دې ته ویل کیږي چې له کبله یې د فاعل څخه د فعل صدور کیږي [(۳)].**

**جلا الدوائي وایي : د یوکار په کولو باعث ته غرض ویل کیږي چې د کولو لومړی محرِّک وي [(٤)].**

**په څرګند ډول بریښي چې د غرض د کلمې مفهوم له لغوي او اصطلاحي معنی څخه یو دی چې فاعل یې د کار په کولو باعث کړی دی [(٥)].**

---

(۱) الصفات الإلهية : ( ۲۰۸- ۲۰۹ ) .

(۲) لسان العرب : ( ۷ / ۱۹٦ ).

(۳) شرح مطالع الأنظار على طوالع الأنوار ،د شمس الدين بن محمود الأصفهاني ليكنه : ( ۹۱۷ )

(٤) شرح العقائد العفوية للجلال الدوائي : ( ۲ / ۲۰٤ ).

(٥) الحكمة والتعليل في أفعال الله : ( ۲٦ – ٤۷ ) .

**○: له دې کلمې څخه د اهل الکلام موخه څه ده؟ له دې کلمې څخه یې موخه دا ده چې د الله پاک ټول افعال او شریعت له حکمت څخه تش وبولي، په دې شبهه چې الله څه هم کوي د خپل مشیئت له مخې یې کوي، که وغواړي له خپل مشیئت له مخې شیان تحریموی او یا یې تحلیلوي، هغوی زیاتوي:**

**که ووایو چې الله ټول کارونه د خپل حکمت له مخې کوي په دوو نارواو کې به واقع شوو:**

**لومړی: که الله د کوم غرض په خاطر یو کار کوي نو غرض ته به محتاج وي نو او غرض پرې باعث شو ځکه یې وکړ تر څو ګټه ورته ورسیږي، او حالانکه الله پاک بې نیازه دی هېڅ چا ته هېڅ ډول احتیاج نه لري، نتیجه دا راووته چې الله پاک د نړۍ تدبیر او دمخلوقاتو کړدې چارې بې غرضه او بې حکمته بشپړوي.**

**دوهم: که د احکامو لپاره حکمتونه او علت ثابت کړو، نو مجبوره یو چې د حکمت په تقاضا په الله څه شیان واجب کړو، ځکه حکمتونه له علت سره څرخیږي، خو ولې اهل السنت یې والجماعت یې شبهات په دې ردوي چې:**

**① د غرض یا اغراض کلمه نه په قراني ایت اونه په نبوي حدیث او نه هم د سلفو صالحینو په اقوالو کې شتون لري، که څه هم مذکوره کلمه سره نقض لري خو په نفی سره یې د الله حکمت انتفاء راځي، باید په تفصیل ویل شي چې ښه خو دا وه چې تعبیر مو ترې په حکمت، رحمت او ارادې سره کړی و په دې خاطر چې نصوص په کې شتون لري.**

**② د زیان لرې کولو او مصلحت تر لاسه کولوپه خاطر الله مخلوق نه دی شنه کړی، هغه پیدا کول ځکه کوي چې تخلیق یې صفت دی، بلکې هغه چې څه کوي د مخلوق د مصلحت لپاره یې کوي د ځان لپاره یې نه کوي. په دې ډېر قراني ایتونه اونبو حدیثونه دلالت کوي لکه (إِنَّهُمْ لَنْ يَضُرُّوا اللَّهَ شَيْئًا[1]) یا (إِنْ تَكْفُرُوا فَإِنَّ اللَّهَ غَنِيٌّ**

(١) سورت ال عمران: (١٧٦).

**عَنكُمْ**[1]) یا په حدیث قدسي کې راځي چې (**یا عبادي انکم لن تبلغوا نفعي فتنفعوني ولن تبلغوا ضري فتضروني**)

③ که د الله د حکمتونو سره سم کله څه شي شتون ولري سمه او صحیح عقیده ده، که څه هم معتزله یې مخالف دي، هېڅ داسې څه نه شته چې په الله د یو کار کول واجب کړي، الله پاک فرمایي (**كَتَبَ رَبُّكُمْ عَلَى نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ**[2]) او وایي (**وَكَانَ حَقّاً عَلَيْنَا نَصْرُ الْمُؤْمِنِينَ**[3]).

د صلاح او اصلح مقیاس بشري عقولو ته نه دی راجع بلکې د الله حکمت ته راجع دی، لکه باران بندېدل، که څه یې هم خلک اصلح نه بولي خو ولې هغه دفسادونو او ورانکارۍ په بدل کې الله دوی ته سزا ورکوي نواصلح همدا ده، یا لکه کفارو ته استدراج ورکول، او داسې نور هغه اړخونه چې خلک یې ښه بولي خو ولې بد وي یا یې بد بولي خو ولې ښه وي.

✍: **تسلسل**: دا اصطلاح هم متکلمین استعمالوي او مجمله اصطلاح ده، په دې خاطر چې مفهوم او مدلول او د خطا اوصواب وجوهات یې معلوم شي تاسو سره لاندې تفصیل شریکوو

❍ د تسلسل تعریف: جرجاني وایي: په داسې ډول کارونه ترتیبول چې پای نه لري.

❍ دې ته ولې تسلسل ویل کیږي؟ تسلسل له سلسلې څخه اخستل شوې کلمه ده، سلسله زنځیر ته ویل کیږي معنی دا ده چې څوک د زنځیر پسې څومره کړۍ هم تړي تړل کیږي پای نه لري.

❍ له دې کلمې څخه د اهل کلام موخه څه ده؟ چونکه متکلمین سره خپل منځ کې بېلابېل دي نو موخې یې هم بدلې دي، د ځینو موخه یې دا ده چې د الله قدیمي صفات

(۱) سورت زمر: (۷).
(۲) سورت انعام: (۵٤).
(۳) سورت روم: (٤۷).

**نفي کړي ، د ځينو موخه يې د الله پاک د افعالو نفي ده او ځينې نور يې په دې کلمې سره د جنت او دوزخ له ابديت څخه منکر دي.**

**○ ايا دا کلمه په قران يا نبوي سنت کې شتون لري ؟ يا چرته يې له سلف صالحينو څخه ثبوت شته ؟ جواب يې يواځې په ( نا ) کېدای شي او بس .**

**○ د دې کلمې اړند د سلفو دريځ څه دی ؟سلفو صالحين او د دين امامان لکه څنګه چې د نورو مجملو کلماتو اړوند خپل دريځ څرګند کړی و ، دا ډول يې دلته هم همغه دريځ دی ، هغوی په دې لفظ کې توقف کوي ، نه يې ثابتوي اونه يې د نفي قايل دي ، که څه هم کلمه ( تسلسل ) د متکلمينو بدعت دی خو د حق او باطل ، د صواب او خطا احتمال لري نو خاموش پاتې دي .**

**خو ولې د معنی په لحاظ هغوی تفصيل کوي ، که د متکلمينو موخه ترې حق و دوی يې ورڅخه قبلوي او که موخه يې ترې باطل وو ترې نه يې قبلوي .**

**خو لنډه خلاصه يې دا ده چې : که د اهل الکلام موخه له تسلسل څخه دا وي چې ازلاً او ابداً الله پاک د کمال او جلال په صفتونو موصوف و ، دا حقه معنی ده او صحيح عقيده ده ، او که موخه يې ورڅخه دا وه چې له الله پاک د لومړي ځل لپاره صفتونه نه لري ، بيا يې د کمال کارونه وکړل او د کمال په صفتونو موصوف شو ، نو دا باطله معنی ده ، نه اسلامي نصوصو ته او نه هم عقل ته استناد لري[۱].**





(۱) د تسلسل اړوند تفصيلي څېړنه په شرح العقيدة الطحاوية : ( ۱۳۰- ۱۳۵ ) کې ، او په ( توضيح المقاصد وتصحيح القواعد شرح النونية ، د شيخ أحمد بن عيسى ليکنه : ( ۳۷۰/۱ ) کې کتلی شئ .

د الله پاک صفتونه د اهل السنة والجماعة د عقیدې په رڼا کې د دریو تقسیمونو لاندې شپږ ډولونه لري :

○ **لومړی تقسیم :**

**د وجود او عدم په اعتبار**
**د الله پاک د صفتونو ډولونه**

**لومړی ډول**

● **ثبوتیه صفتونه :**

**ثبوتیه ټولو هغې صفتونو ته ویلی شي چې د کمال مطلق سره الله پاک خپل ځان لپاره ثابت کړي وي چې د دغې سره ورپکې د کړدو خوګانو او عیبونو نه د الله پاک تنزیه شوي وي ، لکه : حیاة ، علم ، قدرت ، سمع ، بصر ، علو ، ربوبیت ، الوهیت ، او داسې نور....**

**دوهم ډول :**

● **سلبیه صفتونه :**

**سلبیه ټولو هغې صفتونو ته ویل کېږي چې الله پاک له خپل ځان څخه پخپل کتاب کې او یا یې د خپل رسول کریم ﷺ په ژبه نفي کړي وي .**

○ **دوهم تقسیم :**

**د الله پاک د مشیئت او عدم مشئت**
**اړوند صفتونه درې ډوله دي**

● **لومړی ډول :**

**محض ذاتي صفتونه :**

**محض ذاتي هغه صفتونو ته ویل کېږي چې د الله پاک څخه ازلا او ابدا نه جدا کېږي او نه د الله پاک د مشیئت او فعل لاندې وي ، لکه : حیاة ، علم ، قدرت ، حکمت ،**

**عظمت ، وجه ، يدين ،او ...**

**● دوهم ډول :**

**محض فعلي صفتونه :**

**محض فعلي صفتونه هغې صفتونو ته ويل کېږي چې د الله پاک د مشيئت اړوند وي ، که د الله پاک خوښه شي نو کوي يې او که يې خوښه شي نه يې کوي ، لکه : په عرش باندې د هغه استواء ، د شپې په دريمه حصه کې د دنيا اسمان ته د هغه راښکته کېدل ، د قيامت په ورځ د هغه راتګ ، غصه ، رضا ، خوشحالېدل ، خندل او...**

**معتزله وايي : فعلي صفتونه هغې ته ويل کېږي چې اثبات او نفي ورپکې جريان ولري خوکه جريان ونه لري نو په ذاتي نومول کېږي .**

**اشاعره وايي : هغه صفت چې د نفي څخه يې نقيض لازمېږي له ذاتي صفتونو څخه شمېرل کېږي او که له نفي څخه يې نقيض هېڅ وجود ونلري نو په فعلي صفت نومول کېږي .**

**ماتريديه وايي : ټول هغه صفتونه چې په ضد يې الله پاک نه نومول کېږي ، هغې ته ذاتي صفتونه ويل کېږي ، لکه ، قدرت ، علم .**

**او که په ضد يې مخلوق توصيف کېداى شو هغې ته فعلي صفتونه ويل کېږي ، لکه ترزيق ، تخليق او نور هغه صفتونه چې د تکوين صفت ته راجع کېږي [۱].**

**● دريم ډول : هغه صفتونه چې په يو اعتبار ذاتي وي او په بل اعتبار فعلي وي لکه د الله پاک کلام ، ځکه چې کلام د نوعيت او اصل په اعتبار ذاتي صفت دى خو ولې د کلام د احادو او افرادو په اعتبار فعلي صفت شمېرل کېږي په دې معنى چې کلام د**

---

(۱) تکوين له عدم څخه وجود ته راتلو ته ويل کيږي ، ماتريديان ټول فعلي صفتونه د تکوين له متعلقاتو څخه شميري او د حقيقي صفت په توګه يي قايل نه دي په دې دليل چي يا خو به ترې تعدد د قدماؤ ما بين ته راشي او يا به هم د الله پاك د ذات پورې د حوادثو قيام لازم شي .

**الله پاک د مشيئت لاندې دی که يې خوښه شي خبرې کوي او که يې خوښه شي خبرې نه کوي.**

**هيره دې نه وي چې فعلي صفتونو ته اختياري صفتونه او اختياري افعال هم ويل کېږي** [۱].

○ **دريم تقسيم** :

**د اثبات په اعتبار د الله پاک صفتونه په دوه ډوله دي**

● **لومړی ډول** : **خبري سمعي او عقلي صفتونه** :

**دا ډول ټول هغه صفتونه دي چې په ثبوت کې يې شرعي ، عقلي او فطري دليلونه شتون لري ، لکه حياة ، قدرت ، علو ، علم ، سمع ، بصر ، ربوبيت ، الوهيت او ....**

● **دوهم ډول** : **خبريه او سمعية صفتونه** :

**دې ډول ته شرعية او نقلية صفتونه هم ويل کېږي ، دا ډول هغه صفتونه دي چې د ثبوت په هکله يې خبر او سماع د الله پاک له اړخه او يا هم د هغه د رسول کريم ﷺ څخه شوي وي چې سليم فطرت او دروست عقل يې د نفي پر ځای د تاييد کوي ، لکه د الله پاک قدم ، ساق ، اصابع ، مجيئت ، استواء او..**

  

---

(۱) شرح عقيدة الطحاوية : ( ۱۲۸ ) .

د الله پاک د نومونو او صفتونو د ثبوت لپاره اهل السنة والجماعة داسې اصول ، قواعد او ضوابط ایبني دي چې هم ورپکې له مخلوق څخه د الله پاک تنزیه شوې ده او هم هغه صفتونه چې الله پاک خپل ځان لپاره ثابت کړیدي بغیر له تشبیه سم دم اعتراف دی .

## ❶ لومړی اصل

د کمالي صفتونو د ثبوت سره الله پاک له ټولو عیبونو او نقصانونو څخه په پاکوالي عقیده لرل چې د تعطیل ، تشبیه ، تکییف او تمثیل په رنګ نه وي رنګې شوې .

## ❷ دوهم اصل

د الله پاک د صفتونو د ثبوت په مهال تفصیل او ورڅخه د نفي په مهال په اجمال عقیده ساتل .

له تکییف او تمثیل او تعطیل پرته الله پاک له ټول هغه صفتونه ثابتول چې هغه خپل ځان لپاره ثابت کړې وي اویا ورله د هغه رسول کریم ﷺ ثابت کړي وي ، ځکه چې رسول الله ﷺ له تمام مخلوق څخه د الله پاک په ذات باندې ډېر ښه پوهیږي .

او په نفي کې اجمال کول چې الله پاک له هر ډول عیب ، نقص او خو نه پاک او لرې دی .

د ایت الکرسي او د سورت اخلاص او د قرانکریم د نورو ایتونو د مفصل اثبات په څیر مونږ هم په پوره اثبات قایل یو .

او د ( لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ ) د ایت په څېر په نفي کې د اجمال قایل یو .

علامة امام ابن القیم رَحِمَهُ اللهُ وایي :

له هرډول نقص او عیب څخه د الله پاک تنزیه واجبه ده ، که دغه عیب د الله پاک د ذات پورې متصل وي لکه : مرګ ، کمزورتیا ، خوب ، پرکالي ، اکراه ، سفاهت ، ظلم ، او.....

او که يې د ذات پورې متصل نه وي لکه:شريک ،ولد،والد ... [١]

❸ دريم اصل

له عيب او نقص پرته د الله پاک په کمالي صفتونو د ثبوت کلک اقرار کول چې په قرانکريم او يا هم په نبوي حديثونو کې يې په ښکاره ډول ثبوت راغلی وي .

د فلسفي او کلامي اصطلاحاتو په اړوند بايد له تفصيل څخه کار واخستل شي ، تر ټولو لومړی به د دغي متفلسف انسان نه دا پوښتلی شي چې له دغې کلماتو نه ستا موخه څه ده ؟ لکه : الله پاک نه فوق کې دی نه تحت کې ، نه ښی طرف ته دی نه کېڼ طرف ته او... .

که د قايل له دغې نظريې څخه مطلب دا و چې په الله باندې هېڅ مخلوق احاطه نه ده کړې او نه ورپکې د مخلوق څه شی شته ، نو دا صحيح نفي ده چې ټول قراني او نبوي نصوص يې تثبيتوياو که له دغې کلماتو څخه يې د الله پاک علو، استواء على العرش مطلب و ، نو دا باطله نفي ده ، هېڅ کله يې حق طرفداري نه کوي . [٢]

❹ څلورم اصل

په نفي کې به د کمال د ضد ثبوت وي ، ځکه بغير د کمال د ثبوت نه نفي ته بې ادبي ويل کېږي .

امام ابو العز الحنفي رَحِمَهُ الله فرمايي : هر هغه نفي چې په قرانکريم او يا په نبوي حديثونو کې د الله پاک په صفتونو کې راشي ، نو موخه يې د ضد د کمال ثبوت دی لکه الله پاک فرمايي : ﴿ وَلَا يَظْلِمُ رَبُّكَ أَحَداً ﴾ [٣]

ژباړه : او ستا رب په هېڅ چا باندې هېڅ ظلم نه کوي .

---

(١) شرح القصيد النونية د دکتور خليل هراس ليکنه : (٢/ ٥١-٥٩ )

(٢) شرح العقيدة ا لطحاوية : ( ٢٣٨- ٢٤٣ )

(٣) سورت کهف : ( ٤٩ ) .

په دې ايت کې د الله پاک کمال عدل ته اشاره ده .

او فرمايي : ﴿لَا يَعْزُبُ عَنْهُ مِثْقَالُ ذَرَّةٍ فِي السَّمَاوَاتِ وَلَا فِي الْأَرْضِ﴾ (١)

ژباړه : له الله پاک نه په اسمانونو او ځمکو کې هېڅ شي نه پټيږي .

په دې ايت کې د الله پاک کمال علم ته اشاره ده .

او داسې نور ايتونه .

او په عربۍ کې د نثر او شعر په ژبه ډېر داسې شواهد شته چې د ضد په عدم ثبوت نفي پکې د شان شوکت قدحه او ذم دی .

د دې خبرې د مزيد تاييد لپاره کولای شو چې دا شعر يې نمونه ذکر کړو :

قُبَيِّلَةٌ لاَ يَغْدِرُوْنَ بِذِمَّةٍ ** وَلاَ يَظْلِمُوْنَ النّاسَ حَبَّةَ خَرْدَلِ

ژباړه : دغه قبيله کې دخپلې کړې ژمنې اړوند هېڅ غدر خيانت نه کوي او نه د وړې دانې په اندازه په چا ظلم زياتې کوي .

دلته د خيانت انتفاء دانه ده چې کڼې هغوی په وفاء کې شان شوکت لري او نه له ظلم کولو دا مراد دي چې کڼې هغوی د عدل او انصاف څښتنان دي ، نا بلکې دلته د هغوی کسر شان او کمزورۍ ته اشاره ده ، چې له ډېرې ويرې نه شي کولای چې يا خو خيانت وکړي او يا هم په چا ظلم زياتی وکړي .

  

(١) سورت سبا : ( ٣ ) .

## ① لومړۍ قاعده

د الله پاک ټول نومونه په غايت حسن کې دي ، په دې معنى چې د الله پاک ټول نومونه داسې صفتونو ته شامل دي چې هېڅ نقص او عيب ورڅخه نه لازمېږي ، نه احتمالا او نه تقديرا .

## ② دوهمه قاعده

د الله پاک نومونه د وصف د ثبوت سره درې شيانو ته شاملېږي :

١ - الله پاک لره دغه اسم ثابتول .

٢ - الله پاک لره هغه صفت ثابتول چې د غه اسم ورته شامل وي.

٣ - د دغې صفت حکم او مقتضى ثابتول .

لکه د مثال په توګه ( سَمْع ) ، سميع د الله پاک اسم دى چې الله پاک له د ( سَمْع ) صفت ثابتوي ، د دغې وصفت حکم او مقتضى هم دا ده چې الله پاک هر شى ، هره جرګه مرکه ، هره پټه او ښکاره خبره اوري.

## ③ دريمه قاعده

د الله پاک نومونه د الله پاک په ذات او صفتونو باندې په مطابقت ، شمول ، او التزام دلالت کوي .

د مثال په توګه ( خَالِقٌ ) د الله پاک په ذات باندې په مطابقت دلالت کوي د خلق په صفت باندې يې دلالت تضمني دى او په علم او قدرت يې دلالت التزامي دى .

## ④ څلورمه قاعده

د الله پاک ټول نومونه توقيفي دي ، عقل ته ورېکې هېڅ مجال نه دى پاتې چې څنګه يې ثبوت په قراني ايتونو او نبوي حديثونو کې راغلى وي همغسې ورباندې ايمان لرل واجب دي ، د عقل د غوښتنې سره سم ورېکې کمبوت او زيادت بطلان بلل کيږي .

په دې معنى چې د الله پاک نومونه چې څنګه يې ثبوت په قرانکريم کې راغلى وي ، همغسي به ورباندې د زړه نه سم دم اقرار کېداى شي ، د عقل په ترازو به نه تلل کېږي چې ايا دغه اسم الله سره مناسب دى او که نه ؟

## ⑤ پنځمه قاعده

د الله پاک نومونه معلوم عدد نه لري .

کوم حديث چې د الله پاک د نهه نوي نومونو په هکله راغلى دى ، د هغه معنى دا ده چې الله پاک دغې انسان ته چې د الله پاک په نومونو تلفظ وکړي او ياد يې کړي جنت به يې داخل کړي ، وروستنۍ جمله د مخکنۍ جملې نه مستقله نه بلکې د هغې لپاره تتمه ده ، ځکه چې نبي ﷺ فرمايي : ( اَسْأَلُکَ بِکُلِّ اسْمٍ هُوَ لَکَ سَمَّيْتَ بِهِ نَفْسَکَ، اَوْ عَلَّمْتَهُ اَحَدًا مِنْ خَلْقِکَ، اَوْ اَنْزَلْتَهُ فِي کِتَابِکَ، اَوِ اسْتَأْثَرْتَ بِهِ فِي عِلْمِ الْغَيْبِ عِنْدَکَ ) (١)

اوکوم نومونه چې الله پاک ورباندې احاطه کړې ده ، نه خو يې څوک شمارلى شي ، او نه پرې احاطه کولاى شي .

## ⑥ شپږمه قاعده

د الله پاک په نومونو کې الحاد کول د اسم د مقتضى څخه مېلان کول دي ، دغه مېلان او الحاد په څلور ډوله دى :

☜ : **د الحاد لومړى ډول** :

د الله پاک د نومونو يا د نومونو له دلالتونو څخه کلک انکار کول ، لکه اهل التعطيل په عمومې توګه او جهميه په ځانګړې توګه چې کوم ناوړه چلند د الله پاک د نومونو سره کوي چې له اصل څخه يې په نفي قايل دي .

---

(١) مسند احمد بن حنبل حديث نمبر : ( ٣٧١٢ ) .

☜ : **د الحاد دوهم ډول** :

چې د الله پاک نومونه د مخلوقاتو د نومونو په څير وګرځوي ، لکه اهل التشبيه چې کوم ناوړه چلند د الله پاک په نومونو کې کوي .

☜ : **د الحاد دريم ډول** :

الله پاک په داسې نوم نومول چې الله پاک پري خپله خپل ځان نه وي نومولی ، لکه نصرانيان چې ورته ( **اب** ) وايې، يا لکه فلاسفه چې ورته ( **علة فاعله** ) وايې او وړاندې مو وويل چې د الله پاک نومونه توقيفي دي ، د قراني او نبوي دليل پرته به هېڅ څوک هم الله پاک په بل نوم نه نوموي .

☜ : **د الحاد څلورم ډول** :

د الله پاک له نومونو څخه د بتانو لپاره نومونه اشتقاق کول لکه کوم چلند چې مشرکانو کړی و چې د ( **عزی** ) نه يې ( **عزيز** ) له ( **منان** ) يې ( **منات** ) او... اشتقاق کړي وو .

ټول هغه انواع چې په الحاد نومول کېږي او د الله پاک په نومونو کې ترې تغيير او تبديل لازمېږي ، د قراني ايتونو او نبوي حديثونو له مخې په ښکاره دلالت حرام او ناروا دي .

د شرعي دليلونو له مخې ځينې الحاد کفر او ځينې يې شرک او... بلل کېږي

  

### ❶ لومړۍ قاعده

د الله پاک صفتونه ټول د کمال صفتونه دي لکه: حياة، قدرت، سمع، بصر، رحمت، عزت، حکمت، علو، عظمت، او...، هېڅ راز عيب او نقص پکې شتون نه لري.
چې کله هم په صفت کې نقص او عيب وي، هېڅکله يې ثبوت د الله پاک په حق کې جواز نه لري، لکه: جهل، نسيان، عجز، ړوندوالی، کوڼوالی او...

### ❷ دوهمه قاعده

د الله پاک له اسماوو څخه د صفتونو باب ډېر زيات وسيع دی، په دې معنی چې هر اسم صفت ته متضمن وي چې د صفت اشتقاق ورڅخه کېدای شي او صفتونه يوائې د الله پاک د افعالو پورې تعلق لري، د الله پاک افعال داسې انتهاء نه لري لکه څنګه چې يې اقوال انتهاء نه لري.
د مثال په توګه: الله پاک فرمايي: ﴿إِنَّ بَطْشَ رَبِّكَ لَشَدِيدٌ﴾[١]
د ايت په رڼا کې مونږ الله پاک لره د بطش صفت ثابتوو، خو د باطش اسم ورله نه ثابتوو.

### ❸ دريمه قاعده

د الله پاک صفتونه په دوه تقسيمه دي:
ثبوتيه، سلبيه.
○ **ثبوتيه** هغه صفتونو ته ويل کېږي چې الله پاک خپل ځان لپاره په قرانکريم کې او يا ورله د هغه رسول کريم ﷺ په صحيحو او صريحو حديثونو کې ثابت کړي وي.
ټول د کمال صفتونه دي چې يو يې هم د نقص او عيب صفت نه دی.
○ **سلبيه** صفتونه هغې ته ويل کېږي چې الله پاک له خپل ځان نه په قرانکريم کې او يا ورڅخه د هغه رسول کريم ﷺ په صحيحو او صريحو حديثونو کې نفي کړيوي.

---

(١) سورت بروج: ١٢.

لکه : مرګ، خوب، جهل، نسيان او ....

## ❹ څلورمه قاعده

ټول ثبوتيه صفتونه د مدح اوکمال صفتونه دي ، څومره چې د صفتونو دلالت اضافه کېږي هومره د موصوف کمال زياتيږي .

سلبيه صفتونه زياتره په دريو حالتونو کې ذکر کېږي :

☜ : د سلبيه صفت لومړی حالت : د الله پاک په دې قول کې د عموم کمال بيان چې الله پاک د نقص صفتونه نه لري : ﴿لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ وَهُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ﴾ [1]

او په دې قول کې چې ﴿وَلَمْ يَكُن لَّهُ كُفُوًا أَحَدٌ﴾ [2]

☜ : د سلبيه صفت دوهم حالت : د هغې دعواګانو نفي کول چې مشرکانو په الله پاک باندې دروغ تړلي دي ، الله پاک فرمايي : ﴿أَن دَعَوْا لِلرَّحْمَٰنِ وَلَدًا * وَمَا يَنبَغِي لِلرَّحْمَٰنِ أَن يَتَّخِذَ وَلَدًا﴾ [3]

☜ : د سلبيه صفت دريم حالت : د معلوم شي له وجې د الله پاک د کمال په اساس د نقص او عيب وهم منع کول .

لکه الله پاک فرمايي : ﴿وَلَقَدْ خَلَقْنَا السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا فِي سِتَّةِ أَيَّامٍ وَمَا مَسَّنَا مِن لُّغُوبٍ﴾ [4]

## ❺ پنځمه قاعده

ثبوتيه صفتونه په دوه ډوله دي :

ذاتيه صفتونه او فعليه صفتونه .

---

(١) سورت شورى : ( ١١ ).

(٢) سورت اخلاص : ( ٥ ) .

(٣) سورت مريم : ( ٩١ – ٩٢ ).

(٤) سورت ق : ( ٣٨ ) .

○ **ذاتیه صفتونه** دېته ویل کېږي چې الله پاک ورباندې همېشه لپاره متصف وي، لکه علم، قدرت، سمع، بصر، عزت، حکمت، علو، عظمت .

هېره دې نه وي چې ټول خبري صفتونه په دې نوعه کې شاملیږي، لکه : وجه، یدین، سترکې، او داسې نور .

○ **فعلي صفتونه** هغې ته ویلای شي چې د الله پاک د مشیئت اړوند وي، که یې وغواړي کوي یې او که یې وغواړي نه یې کوي، لکه : استواء علیٰ العرش، د دنیا اسمان ته نزول او داسې نور... .

## ❻ شپږمه قاعده

د الله پاک د صفتونو د ثبوت په مهال له دوو شیانو څخه ځان ژغورنه لازم ده :

☜ : تمثیل .

☜ : تکیف .

○ تمثیل د الله پاک ثابت شده صفتونو باندې د مخلوق د صفتونو په شان عقیدې ساتلو ته ویلای شي په دې معنی چې د الله پاک صفتونه د مخلوق د صفتونو په څیر وګڼي دا عقیده د کفر عقیده ده .

دومره ده چې تمثیل او تشبیه منځنی توپیر عموم او خصوص لري، په دې معنی چې هر تمثیل تشبیه ده خو هره تشبیه تمثیل نه ده .

له همدغې کبله الله پاک په قران کریم له خپل ځان مماثل نفي کړی دی چې ﴿**لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ وَهُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ**﴾ (١)

○ تکییف د الله پاک د صفتونو څرنګوالي بیانولو ته ویل کېږي.

## ❼ اوومه قاعده :

د الله پاک ټول صفتونه توقیفي دي، عقل لپاره ورپکې هېڅ راز دخل او مجال نشته،

---

(١) سورت شورى : ( ١١ ) .

**معنی دا ده چې د الله پاک صفتونه به څوک په عقل نه ثابتوي چې دا صفت ځکه ثابتوم چې زما عقل يې مني او دا ځکه نه ثابته وم چې زما عقل يې نه مني، نا بلکي د الله د صفتونو د ثبوت معيار قراني ايتونه او نبوي حديثونه دي .**

**الله پاک لره به هغه صفتونه ثابتيداي شي چې الله پاک يې خپله ځان لپاره په قرانکريم کې ثابت کړيوي، او يا ورله د هغه پيغمبر محمد ﷺ ثابت کړي وي .**

**هر هغه صفت چې قرانکريم د الله پاک په حق کې د ثابت کړی وي ، درې وجهې لري :**

☜ : **په ثابت شوي صفت تصريح کول، لکه : عزت، قوت، بطش، وجه، يدين ..**

☜ : **له ثابت شوي صفت نه الله پاک لره اسم ثابتول لکه : مغفرت نه الله پاک لره د غفور اسم ثابتول .**

☜ : **د ثابت شوي صفت په فعل يا هغه څه چې دغه صفت ورباندې دلالت کوي تصريح کول، لکه : په**

﴿**الرَّحْمَنُ عَلَى الْعَرْشِ اسْتَوَى**﴾[1] **کې د استواء صفت .**

**يا په** ﴿ **يَنْزِلُ رَبُّنَا تَبَارَكَ وَتَعَالَى كُلَّ لَيْلَةٍ إِلَى السَّمَاءِ الدُّنْيَا** ﴾[2] **کې د نزول صفت .**

**په** ﴿ **إِنَّا مِنَ الْمُجْرِمِينَ مُنْتَقِمُونَ** ﴾[3] **کې د انتقام صفت .**

---

(١) سورت طه : ( ٥ ).

(٢) صحيح البخاري حديث نمبر : ( ١١٤٥ ) .

(٣) سورت سجده : ( ٢٢ ).

# توحيدالاسماء والصفات
# د عقل او نقل په اعتبار سره

**الْحَمْدُ لله رَبِّ الْعَلَمِيْنَ، وَ الصَّلَاةُ وَ السَّلَامُ عَلَى نَبِيِّنا وَ سَيِّدنَا مُحُمّد - صلّى اللهُ عَلَيْه وَسلّم – وَعَلَى اله وَ اَصْحَابِه وَ مَنْ تَبِعَهُمْ بِاحْسَانٍ اِلَى يَوْمِ الْدِّيْنِ، وبَعْدُ:**

**مونږ تاسو ته د سلفو صالحينو د عقيدې تشريح او توضيح غواړو، غواړو چې د توحيد الاسماء والصفات اړوند لاره پسې مزيده نوره هم پرقينده او ښه وځليږي.**

**لومړی: تاسو بايد په دې وپوهيږئ چې د توحيدالاسماء والصفات په موضوع کې ننوتل، دا موضوع ډېره څېړل، په دې موضوع کې ژور نظرکول او په هکله يې ډېرې پوښتنې کول سلفو صالحينو له هغې بدعاتو څخه شميرلي دي چې پايلې يې ډېرې ستونزمنې دي.**

**تاسو په دې ښه وپوهيږئ چې د هغې ايتونو څيړنه چې په قران کريم کې د الله پاک د اسماؤ او صفتونو په اړه غربېدلي دي، قران کريم پرې داسې دلالت کوی چې دغه ايتونه په درې بنسټونو ولاړ او مرکّز دي.**

**که هر چا دغه درېو شيانو ته غاړه کېښوده، په دروسته معنی يې د حق فرمانبرداري وکړه او د هغې سالمې عقيدې څښتن جوړ شو چې په کومه عقيده نبی کريم ﷺ او د هغه ملګري او نور سلف صالحين وو.**

**او که چا له دغې درې بنسټونو څخه يو اساس هم پرېښود او غاړه يې ورته په سمه معنی کې نه ښوده، نو بې لارې او په ناسمه روان دی.**

**په دغې درېواړو اساسونو باندې قران کريم ښکاره دلالت کوي.**

## لومړی اساس [1]

**له ټولو مخلوقاتو سره له تشبيه او تمثيل څخه الله پاک منزّه او پاک کړئ، هغه له**

---

(١) دريم اساس په (؟؟) صفحه کې وګوره. ژباړن

هېڅ شی سره مه مشابه کوئ، د الله پاک ثابت صفتونه د مخلوق دصفتونو په څېر مه کڼئ، په دی اصل باندې د الله پاک دا قول دليل دی ﴿لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ وَهُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ﴾ [1]

ژباړه: د الله پاک په شان هېڅ شی نشته دی او هغه اورېدونکی او ليدونکی دی.

او الله پاک فرمايي: ﴿وَلَمْ يَكُن لَّهُ كُفُوًا أَحَدٌ﴾ [2]

ژباړه: او د الله پاک سره هېڅ څوک مساوي او همنامی نشته.

او الله پاک فرمايي: ﴿فَلَا تَضْرِبُوا لِلَّهِ الْأَمْثَالَ﴾ [3]

ژباړه: تاسو الله پاک لره د مشابهت مثالونه مه بيانوئ.

## دوهم اساس

په ټولو هغه څه باندې بې له شک او شبهې ايمان لرل چې الله پاک خپل ځان لپاره خپله ثابت کړي دي، ځکه چې د الله رب العلمين په ذات باندې د الله پاک نه بل هېڅ څوک ښه نه پوهېږي، الله پاک فرمايي: ﴿أَأَنتُمْ أَعْلَمُ أَمِ اللَّهُ﴾ [4]

ژباړه: ايا تاسو ډېر ښه پوهه ياست که الله پاک؟

او د الله پاک په هغې صفتونو کلک ايمان لرل چې ورله نبي ﷺ په صحيحو او صريحو حديثونو کې ثابت کړي وي، ځکه چې د الله پاک په ذات باندې له هغه څخه وروسته د هغه خوږ پيغمبر محمد ﷺ ډېر ښه پوهېږي، الله پاک د نبي ﷺ په حق کې فرمايي: ﴿وَمَا يَنطِقُ عَنِ الْهَوَىٰ * إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحَىٰ﴾ [5]

---

[1] سورت شورى: (١١).

[2] سورت اخلاص: (٤).

[3] سورت نحل: (٧٤).

[4] سورت بقره: (١٤٠).

[5] سورت نجم: (٣ – ٤).

ژباړه : او دغه پیغمبر له خپل ځان نه خبرې نه کوي ، نه ده دغه مګر وحي ده چې ورته کېدای شي .

په هر مکلف لازم دي چې د الله پاک په هغې صفتونو ایمان ولري چې الله پاک د خپل ځان لپاره ثابت کړي دي او یا ورله د هغه رسول ﷺ په صحیحو او صریحو حدیثونو کې ثابت کړي وي او د ثبوت سره سره به الله پاک د کړد مخلوق له مشابهت څخه پاک او منزّه بولي .

او که څوک له دې دوو اصلونو څخه یو اصل هم اخلال کړي ،نو د بې لارۍ او ګمراهۍ په کندو کې پرېوت ، ځکه هغه انسان چې د لویو اسمانونو او ځمکو د رب په وړاندې د افراط او زیاتي لمنه ټینګه ونیسي او بیا د الله پاک په ذات باندې د دې جرات وکړي او ټول صفتونه چې هغه د ځان لپاره خپله ثابت کړي وي او دا یې ترې بېرته نفي کړي ، نو دغه انسان سالم نه بلکې ظالم دی .

ځکه الله رب العلمین خو د خپل ځان لپاره د کمال او کبریاء صفتونه ثابتوي او دغه لیونی انسان د دومره جهالت سره د الله پاک مخې ته ودرېږي او ورته وایي : په کومو صفتونو چې تا خپل ځان موصوف کړی دی ستا د شان سره مناسب نه دی ، ځکه چې پلانکی پلانکی نقص ترې لازمېږي ، زه ستا د دغې ثابتو صفتونو تاویل کوم ، صفت او معنی دواړه لغوه کوم او په بدل کې یې تا لره نور داسې صفتونه ثابتوم چې په قران کریم او نبوي حدیثونو کې هېڅ وجود نلري .

سُبْحَانَكَ هَذَا بُهْتَانٌ عَظِيمٌ

په ځانګړې توګه هغه څوک چې په دې زعم رهی دي چې د الله تعالی صفتونه د مخلوق د صفتونو په شان دي، دغه انسان لیونی ، جاهل ، ملحد او بې لارې دی .

او د چا ایمان چې د الله په صفتونو پیاوړی وي ، د مخلوق له صفتونو څخه یې منزّه بولي ، دغه انسان مؤمن ، مسلمان او د تشبیه او تعطیل د هلاکونکو شبهاتو له رنځ څخه بري او روغ رمټ دی .

په دغه څېر د الله پاک په صفتونو باندې ايمان لرل د الله پاک د دې قول تحقيق دی چې ﴿لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ وَهُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ﴾.

په دې ايت کې ډېر لوی تعليم دی ، دې ايت ټولو رامنځ ته شوو اشکالاتو ته ځواب ويلی دی او د الله پاک د اسماوٴ او صفتونو اړوند شبهات يې حل او فصل کړي دي .

ځکه الله پاک د ﴿لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ﴾ نه وروسته فرمايي ﴿وَ هُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ﴾ نو کله چې ﴿ سَمْعْ ﴾ او ﴿ بَصر ﴾ په دې معنی چې کتل او اورېدل دي حالانکه چې په دې اوصافو باندې نور حيوانات هم موصوف دي ، داسې ښکاري چې الله رب العلمين په وروستني او مخکني جمله کې دېته اشاره کوی چې مخلوق هم ﴿ سَمْعْ ﴾ او ﴿ بَصَر ﴾ لري ، داسې نه چې څوک له الله پاک نه ﴿ سَمْعْ ﴾ او ﴿ بَصَر ﴾ نفي نه کړي ،په دې دليل او دعوه چې حادث – مخلوق – هم ﴿ سَمْعْ ﴾ او ﴿ بَصَر ﴾ لري او يا له ثبوت څخه تشبيه لازميږي ، نا بلکې په مخلوق دا واجب دي چې د الله رب العلمين لپاره ﴿ سَمْعْ ﴾ – اورېدل – او﴿ بَصَر ﴾ – کتل – ثابت کړي ، په دې اساس او بنياد چې ﴿لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ وَهُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ﴾ .

نو الله پاک لره داسې صفتونه شته چې د هغه دکمال او جلال سره ښائيږي او د مخلوق لپاره هم صفتونه شته چې د مخلوق د عجز او حالت سره سم دي .

او د دواړو خواو صفتونه حق او ثابت دي هېڅ شک او شبهه پکې نشته.

مګر دومره خبره ده چې د ځمکو او اسمانونو د رب صفتونه له دې نه ډېر اعلی او اکمل دي چې د مخلوق د صفتونو سره دې مشابهت وخوري .

که څوک له الله رب العلمين څخه داسې صفتونه نفي کړي چې هغه د خپل ځان لپاره ثابت کړي وي ، دغې انسان خپل ځان د الله پاک نه د الله پاک په ذات ځان ډېر زيات پوهه وګرځو.

سُبْحَانَكَ هَذَا بُهْتَانٌ عَظِيمٌ

او څوک چې دا ګمان کوی چې د الله پاک صفتونه د مخلوق د صفتونو په شان دي او ورسره مشابه دي، لږ مخکې مو وويل چې دغه انسان بې لارې، ملحد او ليونی دی .
دغه انسان د الله پاک د دې قول په حکم کې چې د مشرکانو اړوند دی هم داخليږي ( تَاللَّـهِ إِن كُنَّا لَفِي ضَلَالٍ مُّبِينٍ * إِذْ نُسَوِّيكُم بِرَبِّ الْعَالَمِينَ ) [١]
ژباړه : لوړه په الله چې مونږ په ښکاره بې لارۍ کې وو ، کله چې مونږ تاسې د رب العلمين سره برابرولئ .
او څوک چې الله رب العلمين د مخلوق سره یو شان بولي هغه ليونی دی .
تاسو بايد په دې هم وپوهېږئ چې متکلمين هغه خلک دي چې په علم الکلام کې سم دم ننوتي دي ، د منطقي قياسونو په بنسټ يې د عقلی دلائلو په نوم ځېنې دلائل رامنځ ته کړي، د دغې دلائلو په اساس يې د الله ټول ثبوتي صفتونه شپږ قسمونو ته په دې ډول تقسيم کړل : صفات نفسی ، صفات معنی ، صفات معنويه ، صفات فعليه ، صفات سلبيه ، صفات جامعه .
او د صفتونو نورو پاتې ډولونه اعتباري امور وبلل چې په خارج کې وجود نه لري ، دا قاعده يې د ټولو رامنځ ته شوې اشکالاتو اصل او د ګمراهۍ ښکاره سبب وګرځېد .
وسمهال به د متکلمينو په هغې تقسيم څېړنه پيل کړو چې هغوی په قران کريم کې د صفتونو د ايتونو اړوند کړې دی ، سره له دې چې په دغې صفتونو الله پاک هم موصوف دی او مخلوق يې هم ورباندې موصوف کړی دی، د خالق صفتونه هم حق او رښتيا دي او د مخلوق صفتونه هم حق او رښتيا دي ، خو د خالق پروردګار او د مخلوق د صفتونو ترمنځ هېڅ راز مشابهت او ورته والی نشته ، ځکه چې د الله پاک صفتونه د هغه د مقدس ذات سره وړ او مناسب دي او د مخلوق صفتونه د هغوی د عجز او افتقار سره مناسب دي .

---

(١) سورت شعراء : ( ٩٧ – ٩٨ ) .

د خالق او د مخلوق د صفتونو ترمنځ دومره توپير او فرق دی څومره توپير چې د خالق د ذات او د مخلوق د ذات ترمنځ دی .

اما هغه خبره چې نن سبا د مسلمانانو ترمنځ په بېلابېلو سيمو کې تر غوږ کيږي چې يک او يوائې هغوی اووه صفتونه د الله پاک په حق کې ثابتوي او په صفات المعاني يې نوموي ، خو د دغې سره د نورو صفات معانيو نه انکار کوي .

د دوی په اصطلاح صفات معانيه هغې ته ويل کيږي چې :

په وجود يې معنی دلالت کوي او دغه صفت قائم بالذات وي .

هغه صفات معانی چې هغوی پرې اقرار کوي اووه صفتونه دي ، چې په لاندې توګه يې يادونه کيږي :

قدرت ، اراده ، علم ، حياة ، سمع ، بصر ، کلام .

باقی نور ټول صفات معاني يې له الله پاک څخه نفي کړي دي چې په راروانو کرښو کې يې مزيده تفصيلي څېړنه ، دغه مسئله به د الله پاک د کتاب د قراني ايتونو په رڼا کې واضحه کړو.

معتزله بيا له دغې اوو صفتونو څخه هم منکر دي له دغې صفتونو څخه يوائې احکام ثابتوي او بس ، هغوی وايي : الله پاک قادر دی خو پخپل ذات ، سميع دی خو پخپل ذات او....

نو متعزله د تعدد قديم نه د تېښتې له کبله ( سمع ، بصر، حياة ، علم ... ) نه ثابتوي .

د معتزلو د دغې دربځ تناقض او څرګنده ګمراهي هر عاقل ته په ډاګه ده .

چې کله يو ذات پورې علم قائم نه شی له علم پرته ورته عالم ويل ناشوني دي ، د دې تناقض اړوند ژورې عقلي څېړنې ته هېڅ اړتيا نشته .

  

## صفات معنويه او پر هغې بحث او څېړنه

چې کله ستاسو عقل ته تېره څېړنه يو څه اندازه ښکته شوه ، اوس به په هغې صفتونو خبرې اترې وکړو چې هغوی پرې اقرار کړی دی او په ثبوت يې قايل دي .

مونږ وايو: [۱]

۱- : الله لره د ( **قدرت** ) په صفت هغوی قائل دي او پرې يې موصوف کړی دی ، الله پاک فرمايي : ( **اِنّ اللّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ** )[۲]

ژباړه : يقينا چې الله پاک په هر څه قدرت لرونکی دی .

مونږ هم په قطع او جزم وايو چې الله پا ک د قدرت په صفت موصوف دی څنګه چې د هغه د شان او کمال سره ښائيږي .

همدغه شان الله پاک خپل مخلوق هم د قدرت په صفت موصوف کړی دی ، الله پاک فرمايي ( **اِلّا الّذِينَ تَابُوا مِن قَبۡلِ اَن تَقۡدِرُوا عَلَيۡهِمۡ فَاعۡلَمُوا اَنّ اللّهَ غَفُورٌ رّحِيمٌ** )[۳]

ژباړه : مګر هغه کسان چې توبه وباسي مخکې له دې چې تاسې پرې برلاسي شئ .

الله پاک په دې ايت کې د مخلوق لپاره هم قدرت ثابت .

او دا زمونږ عقيده ده چې په قران کريم ټول هر څه حق او رښتيا دي ، الله پاک داسې حقيقي قدرت لري چې څنګه يې د کمال او جلال سره ښائيږي او مخلوق يې هم حقيقي قدرت لري چې څنګه د هغوی د حال ، فناء او عجز او افتقار سره مناسب دی

.

---

(۱) معنوية صفتونه دوی هغې ته وايي چې د عدم او وجود ترمنځ وي چې له جملې څخه يې دغه اووه صفتونه دي چې شيخ رَحِمَهُ الله يې يادونه کړېده او دارنګه عقايد د متکلمينو د حماقتونو نمونې دي . ژباړن .

(۲) سورت بقرة : (۲۰ ).

(۳) سورت مائدة : ( ۳٤ ).

د خالق او مخلوق د قدرت د دواړو صفتونو ترمنځ دومره توپیر او فرق دی څومره فرق او توپیر چې د خالق ذات او د مخلوق د ذات ترمنځ دی، دومره فرق د صفتونو د ثبوت لپاره بسنه کوي.

۲- ۳ - : په قران کریم کې الله پاک خپل ځان په ډېرو ایتونو کې په ( سمیع او بصیر ) موصوف کړی دی، الله پاک فرمایي ( اِنّ اللّهَ سَمِیعٌ بَصِیرٌ )[1]

ژباړه : یقینا چې الله پاک اورېدونکی او لیدونکی دی.

او فرمایي :( لَیْسَ کَمِثْلِه شَيْءٌ وَهُوَ السّمِیعُ الْبَصِیرُ )[2]

ژباړه : د الله پاک په څېر هېڅ شی نه شته او هغه لیدونکی او اوریدونکی دی.

او د دغې سره یې خپل مخلوق هم په ( سمیع او بصیر ) موصوف کړی دی، الله پاک فرمایي : ( اِنّا خَلَقْنَا الْاِنسَانَ مِن نُطْفَة اَمْشَاجٍ نَبْتَلِیه فَجَعَلْنَاهُ سَمِیعًا بَصِیرًا )[3]

ژباړه : مونږ انسان له مختلطې نطفې څخه پیدا کړی دی چې له یو حالت نه مو بل حالت ته بوتو او بیا مو هغه اوریدونکی او لیدونکی وګرځو.

او الله پاک فرمایي :( اَسْمِعْ بِهِمْ وَاَبْصِرْ یَوْمَ یَاْتُونَنَا لَـکِنِ الظّالِمُونَ الْیَوْمَ فِي ضَلَالٍ مُبِینٍ )[4]

ژباړه : په هغه ورځ چې دوی مونږ ته راشي دوی به څومره ښه اوریدونکي او لیدونکي وي.

او څه چې په قران کریم کې دي ټول رښتیا او حق دي، مونږ پکې هېڅ شک او شبهه نه لرو، الله پاک حقیقي ( سمع او بصر ) لري چې څنګه د هغه د جلال او کمال

---

[1] سورت مجادلة : ( ۱ ).

[2] سورت شورى : ( ۱۱ ).

[3] سورت دهر : ( ۲ ).

[4] سورت مریم : ( ۳۸ ).

سره ښائیږي او مخلوق هم حقیقي ( سمع او بصر ) لري چې څنګه د هغوی د حال، عجز، فناء او فقرسره مناسب او ښائیږي .
د خالق او مخلوق د صفتونو ترمنځ دومره مخالفت او منافات دی لکه د خالق او د مخلوق د ذات ترمنځ چې څومره دی .
۴- : الله پاک خپل ځان د ( حیاة ) په صفت موصوف کړی دی ،الله پاک فرمايي : ( وَتَوَكَّلْ عَلَى الْحَيِّ الَّذِي لَا يَمُوتُ ) [١]
ژباړه : په هغه ژوندي ذات بروسه ولره چې نه مړ کیږي .
او الله پاک خپل مخلوق هم د ( حیاة ) په صفت موصوف کړی دی ، الله پاک فرمايي : ( وَجَعَلْنَا مِنَ الْمَاءِ كُلَّ شَيْءٍ حَيٍّ أَفَلَا يُؤْمِنُونَ ..) [٢]
ژباړه : او مونږ هر ژوندی څیز له اوبو څخه پیدا کړی دی، دوی ولې ایمان نه لري .
او بیا فرمايي : ( وَسَلَامٌ عَلَيْهِ يَوْمَ وُلِدَ وَيَوْمَ يَمُوتُ وَيَوْمَ يُبْعَثُ حَيًّا ) [٣]
ژباړه : او سلام دې وي په هغه باندې په هغه ورځ چې وریکې پیدا شوی و او په هغه ورځ چې وریکې به مړ کیږي او په هغه ورځ چې به وریکې ژوندی راپاڅیږي .
او الله پاک فرمايي : ( يُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ وَيُخْرِجُ الْمَيِّتَ مِنَ الْحَيِّ وَيُحْيِي الْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا وَكَذَلِكَ تُخْرَجُونَ ) [٤]
ژباړه : الله پاک ژوندی له مړي څخه راوباسي او مړی له ژوندي څخه راوباسي ، له مړينې ( وچکالۍ ) وروسته ځمکه رازرغونوي ، همداسې به تاسو هم راپورته کړی شئ .

---

(١) سورت فرقان : ( ٥٨ ) .

(٢) سورت أنبياء : ( ٣٠ ).

(٣) سورت مريم : ( ١٥ ) .

(٤) سورت روم : ( ١٩ ).

او په قاطع ډول وایو چې : د الله پاک لپاره د ( حیاة ) صفت شته او حقیقي صفت دی څنګه چې د الله پاک د کمال او جلال سره ښائیږي.

د مخلوق لپاره هم د ( حیاة ) صفت شته د ی څنګه چې د دوی د حال ، عجز او فناء سره مناسب دی .

د خالق او د مخلوق د ( حیاة ) د صفت ترمنځ دومره ډېر منافات او فرق دی ، څومره فرق چې د خالق د ذات او د مخلوق د ذات ترمنځ دی .

۵ - : الله پاک ځان د ارادې په صفت موصوف کړی دی ، الله پاک فرمایي : ( فَعَّالٌ لِّمَا يُرِيدُ ) [۱]

ژباړه : الله پاک ډېر ښه کونکی دی د هغه کار چې هغه يې وغواړي .

او فرمایي : ( إِنَّمَا أَمْرُهُ إِذَا أَرَادَ شَيْئًا أَن يَقُولَ لَهُ كُن فَيَكُونُ ) [۲]

ژباړه : یقینا چې د الله پاک امر چې د څه شی اراده وکړی نو ورته ووایي چې شه نو هغه شی موجود شي .

او الله پاک خپل ځېني مخلوق هم د ارادې په صفت موصوف کړی دی ، الله پاک فرمایي : ( إِن يُرِيدُونَ إِلَّا فِرَارًا ) [۳]

ژباړه : دوی اراده نه لري مګر د تېښتې .

او فرمایي : ( تُرِيدُونَ عَرَضَ الدُّنْيَا وَاللَّهُ يُرِيدُ الْآخِرَةَ ) [٤]

ژباړه : ایا تاسو د دنیا د متاع اراده لرئ او حالانکه الله پاک له تاسو څخه د اخرت اراده لري ؟

---

(۱) سورت بروج : ( ١٦ ) .

(۲) سورت يس : ( ٨٢ ) .

(۳) سورت أحزاب : ( ١٣ ).

(٤) سورت أنفال : ( ٦٧ ) .

او فرمايي : ( يُرِيدُونَ لِيُطْفِئُوا نُورَ اللَّهِ بِأَفْوَاهِهِمْ وَاللَّهُ مُتِمُّ نُورِهِ وَلَوْ كَرِهَ الْكَافِرُونَ ) (١)
ژباړه : دوی اراده لري چې د الله پاک نور ( رڼا ) د خولې په پوکو مړه کړي او الله هرومرو خپله رڼا بشپړه کونکی دی که څه هم کافران يې پسند نه بولي .
او په دې کې شک نشته چې د الله پاک لپاره حقيقي اراده شته دی ، څنګه چې د هغه د کمال او جلال سره بنائيږي .
او د مخلوق لپاره هم حقيقي اراده شته څنګه چې د دوی د حال ، عجز ، فناء او افتقارسره مناسب او بنائيږي .
څومره فرق او منافات چې د خالق د ذات او د مخلوق د ذات ترمنځ دی ، دغه اندازه فرق د خالق د ارادې د صفت او د مخلوق د ارادې د صفت ترمنځ هم دی .
٦ - : الله پاک خپل ځان د ( علم ) په صفت موصوف کړی دی ، الله فرمايي : ( وَاللَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ) (٢)
ژباړه : او الله پاک په هر شي پوهه او دانا دی .
او فرمايي : ( لَّـكِنِ اللَّهُ يَشْهَدُ بِمَا أَنزَلَ إِلَيْكَ أَنزَلَهُ بِعِلْمِهِ ) (٣)
ژباړه : لکن الله پاک ګواهي ورکوي په هغه څه چې په تا باندې يې د خپل علم سره نازل کړي دي .
او فرمايي :( فَلَنَقُصَّنَّ عَلَيْهِم بِعِلْمٍ وَمَا كُنَّا غَائِبِينَ ) (٤)
ژباړه : خامخا به مونږ دوې ته د علم سره بيان وکړو او د دوی له اعمالو څخه مونږ غائب ( نا خبره ) نه يو .

---

(١) سورت صف : ( ٨ ) .

(٢) سورت تغابن : ( ١١ ).

(٣) سورت نساء : ( ١٦٦).

(٤) سورت اعراف : ( ٧ ).

**او الله پاک خپل ځېنې مخلوق هم په علم موصوف کړی دی ، الله پاک فرمايي : ( قَالُوا لَا تَوْجَلْ اِنَّا نُبَشِّرُكَ بِغُلَامٍ عَلِيمٍ )** [١]

**ژباړه :ملائکو ورته وويل : مه وېرېږه ، مونږ درته په پوهه ( دانا ) هلک زېرى درکوو .**

**او الله پاک فرمايي : ( وَ اِنَّهُ لَذُو عِلْمٍ لِّمَا عَلَّمْنَاهُ )** [٢]

**ژباړه : او يقينا هغه د لوی علم څښتن و چې مونږ ورته ورکړی و .**

**او په دې کې هېڅ شک نشته چې د رب کائنات لپاره حقيقي علم شته او هغه پرې موصوف دی ، څنګه چې د هغه د جلال او کمال سره لائق او ښائيږي .**

**او د مخلوق لپاره يې هم حقيقي علم شته چې څنګه د هغوی د افتقار، عجز، حال او فناء سره لائق او ښائيږي ، د خالق رب کائنات د حقيقي علم او د مخلوق د حقيقي علم ترمنځ دومره منافات او فرق دی لکه څومره توپير چې د خالق لايزال او د مخلوق د ذات ترمنځ دی .**

**٧ - : الله پاک خپل ځان د ( کلام ) په صفت موصوف کړی دی ، الله پاک فرمايي :( وَكَلَّمَ اللّـهُ مُوسَىٰ تَكْلِيمًا )** [٣]

**ژباړه : او الله پاک خبرې کړې دي موسى عليه السلام سره په خبرو کولو سره .**

**او الله پاک فرمايي :( فَأَجِرْهُ حَتَّىٰ يَسْمَعَ كَلَامَ اللّـهِ )** [٤]

**ژباړه : کافر ته تر هغه امن ورکړه تر څو د الله پاک کلام او خبرې واوري .**

**او خپل ځينې مخلوق يې هم د ( کلام )په صفت موصوف کړی دی ، الله فرمايي : (**

---

(١) سورت حجر : ( ٥٣ ).

(٢) سورت يوسف : ( ٦٨ ) .

(٣) سورت نساء : ( ١٦٤).

(٤) سورت توبة : ( ٦ ).

**﴿فَلَمَّا كَلَّمَهُ قَالَ إِنَّكَ الْيَوْمَ لَدَيْنَا مَكِينٌ أَمِينٌ﴾** [1]

**ژباړه : چې کله یې ورسره خبرې اترې وکړې نو باچا ورته وویل ته مونږ سره نن نه وروسته پاتې کېدونکی او په رازونو امین یې .**

**او فرمایي : ﴿الْيَوْمَ نَخْتِمُ عَلَى أَفْوَاهِهِمْ وَتُكَلِّمُنَا أَيْدِيهِمْ﴾** [2]

**ژباړه : مونږ ورته نن ورځ په خولو مهرونه لګوو او مونږ سره به د دوی لاسونه خبرې وکړي .**

**او په دې کې هېڅ شک نشته چې د الله پاک لپاره حقیقي کلام شته چې ځنګه د هغه د کمال سره لائق او ښائیږي .**

**او د مخلوق لپاره هم حقیقي کلام شته ځنګه چې د دوی د عجز، افتقار ، حال او فناء سره ښائیږي .**

**د خالق تعالی د حقیقي کلام او د مخلوق کلام ترمنځ دومره توپیر دی لکه څومره توپیر او منافات چې د خالق د ذات او د مخلوق د ذات ترمنځ دی .**

**دغه تېره څېړنه چې تاسو د کومو صفتونو اړوند واورېده دېته هغوی صفات معنویه وایي چې د قران کریم ایتونو پرې الله پاک هم موصوف کړی دی او مخلوق یې وربانديې هم موصوف کړی دی او دا خبره په هېڅ عاقل پټه نده چې د الله پاک ټول صفتونه حق او رښتیا دي چې ځنګه د هغه د بړایي او کمال سره لائق او ښائیږي .**

**او د مخلوق لپاره هم حقیقي صفتونه شته دی چې ځنګه د هغوی د فقر ، عجز او فناء سره مناسب دي .**

**او د صفتونو ترمنځ دومره فاصله ده څومره فاصله چې د ذواتو ترمنځ ده .**

**اوس مهال به په هغه صفتونو رڼا واچوو چې دوی ورته صفات سلبیه وایي .**

---

(١) سورت یوسف : ( ٥٤ ) .

(٢) سورت یس : ( ٦٥ ).

## د متکلمينو په نېز سلبي صفتونه او په هغې علمي څيړنه

سلبي صفت هغې ته ويلای شي چې په عدم محض دلالت کوي[۱] موخه يې ورڅخه دا ده چې له الله پاک څخه داسې صفتونه نفي کول چې د شان سره يې نه ښائيږي، پرته له دې چې صفت دې د ذات پورې قائمې وجودي معنی باندې دلالت وکړي.

د دې مذهب لارويانو سلبي صفتونه پنځه تقسيمه کړي دي چې شپږم نلري او د سلبي صفتونو دغه ډولونه په دې توګه دي:

قِدَم، بقاء، مخالفة الخلق، وحدانيت، غنی مطلق.

هېره دې نه وي چې (غنی مطلق) ته (قيام بالنفس) هم وايي ،له دې عبارت يې موخه دا ده چې الله پاک له (حيز، جهت او محل) نه غني دی.

د هغوی د دې خبرې له پېژندو وروسته بايد په دې هم پوهه شئ چې متکلمينو د الله پاک په حق کې د (قِدَم او بقاء) صفتونه ثابت کړي دي، په دې زعم چې دغه دواړه صفتونه الله پاک خپل ځان لپاره په دې قول کې ثابت کړي دي چې (**هُوَ الْأَوَّلُ وَالْآخِرُ**...)[۲]

ژباړه: الله پاک اول دی (څوک ترې مخکې نه و) او اخر دی (وروسته ترې څوک نشته دی).

او (قِدَم) د عقيدې په اصطلاح کې (سلب العدم السابق) يعنې د مخکني شتوالي ته ويل کيږي خو دومره ده چې (قِدَم) له (ازل) څخه خاص دی.

ځکه (ازل) هغې ته ويل کيږي چې پيل او افتتاح ونه لري که هغه وجودي وي لکه د الله پاک ذات او د هغه صفتونه او که عدمي وي لکه ما سوی د الله نه نور ټول حوادث.

---

(۱) عدم محض ديته ويل کيږي چې بالکل نه وي. ژباړن.

(۲) سورت حديد: (۳).

د متکلمینو په نېز ( قِدَم )هغه ته ویل کیږي چې پیل او افتتاح ونه لري په دې شرط چې وجودي وي لکه د الله پاک ذات چې د کمال او جلال په صفتونو موصوف دی .
اوس به په هغې صفتونو نظر واچوو چې دوی الله پاک لره ثابت کړي دي لکه ( قِدَم او بقاء ) اګر که ځیني علماء د الله پاک په ( قَدِیم ) موصوفول بد هم ګڼي چې لږ څه وروسته یې توضیح راروانه ده [1].
الله پاک خپل مخلوق په ( قِدَم ) موصوف کړی دی ، الله پاک فرمایي : ( قَالُوا تَاللّـهِ اِنّکَ لَفِي ضَلَالِکَ الْقَدِیم ) [2]
ژباړه : بچو یې ورته وویل : په الله سوګند چې تروسه ته په مخکنۍ ګمراهۍ کې یې .

او الله پاک فرمایي ( وَالْقَمَرَ قَدّرْنَاهُ مَنَازِلَ حَتّىٰ عَادَ کَالْعُرْجُونِ الْقَدِیمِ ) [3]
ژباړه : او سپوږمۍ لپاره مو منزلونه مقدر کړي دي تر دې چې د خرما د مخکنۍ ( زړې ) څانګې په شان شي .
او الله پاک خپل مخلوق د بقاء په صفت هم موصوف کړی دی ، الله پاک فرمایي : ( وَ جَعَلْنَا ذُرّیّتَهُ هُمُ الْبَاقِینَ ) [4]
ژباړه : او مونږ د نوح عليه السلام اولاده باقي پاتې کیدونکې وګرځوله .
او الله پاک فرمایي :( مَا عِندَکُمْ یَنفَدُ وَمَا عِندَ اللّـهِ بَاقٍ ) [5]
ژباړه : هغه څه چې تاسو سره دی فاني او ختمېدونکي دي ، او څه چې د الله پاک

---

(۱) ( ؟؟) صفحه وګوره .
(۲) سورت یو سف : ( ٥٨ ) .
(۳) سورت یس : ( ۳۹ ) .
(٤) سورت شعراء : ( ٧٦ ) .
(٥)سورت نحل : ( ٩٦ ) .

**سره دي تل باقي پاتې کیدونکي دي .**

**او په دې کې هېڅ شک نشته چې کوم صفتونه الله پاک د خپل ځان لپاره ثابت کړي دي حق او رښتیا دي او د هغې صفتونو ضد او منافي دي چې په کومو صفتونو یې مخلوق موصوف کړی دی .**

**دومره ده الله پاک خپل ځان په قران کریم کې د (قِدَم) په صفت نه دی موصوف کړی او ځینو سلفو صالحینو هم د الله پاک په حق کې دا وصف بد ګڼلی دی چې هغه پرې نه شي موصوف کېدای .**

**ځکه له دغې صفت څخه دا ثاتیبږي چې الله پاک مسبوق بالعدم دی .**

**نعوذ بالله ثم نعود بالله .**

**لکه څنګه چې په دې ایتونو کې مخلوقاتو ته اشاره شوېده چې دوی هم مسبوق بالعدم وو : (کَالْعُرْجُونِ الْقَدِیمِ ) (اِنَّکَ لَفِي ضَلَالِکَ الْقَدِیمِ) (اَنتُمْ وَابَاؤُکُمُ الْاَقْدَمُونَ).**

**خو ولې ځینو علماوو ظناً دا ثابته کړېده چې په دې معنی باندې حدیث وارد دی او د الله پاک صفت جوړېدای شي .**

**خو ځینې نور بیا وایي : د دې صفت بالکل ثبوت نشته او کوم چې د (اولیّت) او (اخریت) صفتونه دي چې الله پاکورباندې خپله خپل ځان موصوف کړی دی چې (هُوَ الْاَوّلُ وَالْاٰخرُ . . . .)[1]**

**نو په دې صفت یې مخلوق هم موصوف کړی دی ، الله پاک فرمایي : (اَلَمْ نُهْلِکِ الْاَوّلِینَ * ثُمّ نُتْبِعُهُمُ الْاٰخرِینَ)[2]**

**ژباړه : ایا مونږ اولني خلک نه دي هلاک کړي ؟ د جرمونو په سبب باندې ، بیا مونږ وروستني مجرمان د هغوی پسې ورلیږوو او په دې کې هېڅ شک نشته چې په کوم**

---

(۱) سورت حدید : ( ۳ ) .

(۲) سورت مرسلات : ( ١٦ ) .

صفت الله پاک خپل ځان موصوف کړی دی د هغه د جلال او کمال سره لائق دی .
او د مخلوق لپاره هم ( اولیت ) او ( اخریت ) شته لکه څنګه چې د هغوی د حال ، عجز ، فناء ، او افتقار سره مناسب دی .
د تېر په څېر الله پاک خپل ځان د ( وَاحِد ) په صفت موصوف کړی دی ، الله پاک فرمايي : ( وَإِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ لَّا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ الرَّحْمَٰنُ الرَّحِيمُ ) [١]
ژباړه : او ستاسو معبود یو معبود دی ، له هغه پرته بل برحق معبود نشته دی او هغه عام او خاص مهربان دی .
او خپل ځینې مخلوق یې هم د ( وَاحِد ) په صفت موصوف کړی دی ، الله پاک فرمايي : ( يُسْقَىٰ بِمَاءٍ وَاحِدٍ ) [٢]
ژباړه : چې په یو ډول اوبو خړوبولی شي .
همدغه شان الله پاک خپل ځان د ( غِنَی ) په صفت هم موصوف کړی دی ،الله پاک د ځان اړوند فرمايي : ( فَإِنَّ اللَّهَ لَغَنِيٌّ حَمِيدٌ ) [٣]
ژباړه : په یقین سره چې الله پاک بې پروا او ستائلی شوی دی .
او الله فرمايي : ( فَكَفَرُوا وَتَوَلَّوا وَّاسْتَغْنَى اللَّهُ وَاللَّهُ غَنِيٌّ حَمِيدٌ ) [٤]
ژباړه : هغوی کفر وکړ او له فرمانبرداریۍ څخه یې سرغړونه وکړه او الله پاک تری بې پروا شو ، الله پاک بی پروا او ستائلی شوی ذات دی.
او خپل ځینې مخلوق یې هم د ( غِنَی ) په صفت موصوف کړی دی ، الله پاک فرمايي :

---

(١) سورت بقرة : ( ١٦٣ ) .
(٢) سورت رعد : ( ٤ ) .
(٣) سورت ابراهیم : ( ٨ ) . .
(٤) سورت تغابن : ( ٦ ) .

﴿ وَمَن كَانَ غَنِيًّا فَلْيَسْتَعْفِفْ ﴾ [1]

**ژباړه : او هغه څوک چې مالداره – بی پروا – وی نو ځان دې دیتیم د مال نه وساتي.**

**متکلمین دې ته سلبي صفتونه وايي چې قران کریم پرې خالق تعالی او مخلوق دواړه موصوف کړي دي او په دی کې شک نشته چې په کوم صفت خالق پروردګار موصوف دی ، د هغه کمال او جلال سره ښائیږي او په کوم صفت چې مخلوق موصوف شوی دی ، د هغوی د فناء ، عجز او افتقارسره لائق اوښائیږي .**

  

---

([1]) سورت نساء : ( ٦ ) .

## د اووه ګونو صفتونو څېړنه

اوس مهال به په هغې صفتونو علمي رڼا او بحث مباحثه وکړو چې هغوی ورته معنويه صفتونه وايي ، د بېلګې په توګه هغوی وايي : الله قادر ، عالم ، حيّ ، مريد ، سميع ، بصير ، او متکلم ذات دی .

د مخکنۍ څېړنې په رڼا کې د دغې اووګنو صفتونو ثبوت الله پاک په دغې صفتونو توصيفول دي .

د ( معنوي حالت ) د ثبوت په خاطر متکلمين اړتيا ويني تر څو دغه صفتونه ثابت کړي په دې ګومان چې ( حالت معنوی ) د عدم او وجود ترمنځ ثبوتي واسطه ده .

سمه او دروسته خبره داده چې دغه اټکل خالص خرافات او سوچه خيالات دی ځکه چې سالم عقل هېڅکله هم د ( يو شي ) او نقيض ترمنځ د واسطو پلټنه نه کوي .

خلاصه خبره ده چې يو شی معدوم وي هغه بالکل موجود نه وي او چې يو شی موجود وي هغه بالکل معدوم نه وي .

د دې داوړو ترمنځ هېڅ راز واسطه نشته عاقلان په دې خبرو ډېر ښه پوهيږي .

وړاندې چې مونږ کوم صفتونه ذکر کړل چې الله پاک ( قادر ، عالم ، حيّ ، مريد ، سميع ، بصير او متکلم ) ذات دی .

په قران کريم کې پرې الله پاک او د هغه مخلوق دواړه موصوف شوي دي ، د الله پاک صفتونه د هغه کمال او جلال سره لائق دي او د مخلوق صفتونه د هغوی د حال او افتقار سره لائق او ښائيږي .

د دې خبرې هېڅ ضرورت نشته چې مونږ دې د اسمانونو او ځمکو رب نه د هغه صفتونه د تشبيه په نوم نفي کړو او نه مونږ الله پاک د مخلوق سره مشابه کوو .

بلکې لازمي او ضرور ده چې بايد مونږ په دغې ثابتو صفتونو کلک اقرار وکړو او په داسې حالت کې پرې ايمان ولرو چې مونږ الله پاک د مخلوق سره د هر راز مشابهت نه پاک او منزّه کړی وي .

دغه فعلي صفتونه چې په قران کريم کې ورباندې الله پاک او مخلوق بارها موصوف شوي دي په ډېر زيات کثرت سره راغلي دي .

په دې کې هېڅ شک نشته چې په کومو صفتونو الله پاک موصوف دی ، ټول د هغو صفتونو منافي او ضد دي چې مخلوق پرې موصوف شوی دی ، د خالق او مخلوق د صفتونو ترمنځ دومره توپير دی لکه د خالق او مخلوق د ذات ترمنځ چې څومره منافات دی .

١ — : له دغې فعلي صفتونو څخه يو هم الله پاک خپل ځان د ﴿ رزق ﴾ په صفت موصوف کړی دی ، الله فرمايي : ﴿ مَا أُرِيدُ مِنْهُم مِّن رِّزْقٍ وَمَا أُرِيدُ أَن يُطْعِمُونِ ﴾[1]

ژباړه : زه له دوی څخه رزق نه غواړم او نه دا چې ما ته دوی خوراک راکړی * په يقين سره چې الله پاک رزق ورکونکې او توانا دی .

الله پاک فرمايي : ﴿ وَمَا أَنفَقْتُم مِّن شَيْءٍ فَهُوَ يُخْلِفُهُ وَهُوَ خَيْرُ الرَّازِقِينَ ﴾[2]

ژباړه : تاسو چې څه نفقه کوئ نو الله پاک به يې درته عوض درکړی ، او هغه ډېرښه رزق ورکونکی دی .

او الله فرمايي : ﴿ قُلْ مَا عِندَ اللَّهِ خَيْرٌ مِّنَ اللَّهْوِ وَمِنَ التِّجَارَةِ وَاللَّهُ خَيْرُ الرَّازِقِينَ ﴾[3]

ژباړه : ورته ووايه د الله پاک سره چې څه دي هغه له نندارو او تجارت نه ډېرښه دي او الله پاک ډېر ښه رزق ورکونکی دی .

او خپل ځينې مخلوق يې هم د ﴿ رزق ﴾ په صفت موصوف کړی دی .

الله پاک فرمايي : ﴿ وَلَا تُؤْتُوا السُّفَهَاءَ أَمْوَالَكُمُ الَّتِي جَعَلَ اللَّهُ لَكُمْ قِيَامًا وَارْزُقُوهُمْ

---

(١) سورت زاريات : ( ٥٧ ) .

(٢) سورت سبأ : ( ٣٩ ) .

(٣) سورت جمعة : ( ١١ ) .

**فِيهَا وَاكْسُوهُمْ وَقُولُوا لَهُمْ قَوْلًا مَعْرُوفًا )**[١]

**ژباړه : او بې عقلانو ته خپل هغه مالونه مه ورکوئ چې الله پاک پکې ستاسو د ګزران سبب ګرځولی دی او په مالونو کې ورته رزق او پوښاک ورکړئ او نېکې نرمې خبرې ورسره وکړئ .**

**او فرمايي : ( وَعَلَى الْمَوْلُودِ لَهُ رِزْقُهُنَّ )**[٢]

**ژباړه : او د ماشوم په پلار د دغې ماشوم د مېندو ته رزق ورکونه لازم دي .**

**او په دې کې هيڅ شک نشته چې هغه فعلي صفت چې الله پاک پرې خپل ځان موصوف کړی دی د هغه صفت مخالف او ضد دی چې په کوم فعلي صفت يې مخلوق توصيف شوی دی .**

**د صفتونو ترمنځ دومره مخالفت او منافات دی لکه د الله پاک او د مخلوق د ذات ترمنځ چې څومره منافات او توپير دی .**

**٢ - : الله پاک خپل ځان په بل فعلي صفت ( عمل ) موصوف کړی دی ،الله پاک فرمايي : ( أَوَلَمْ يَرَوْا أَنَّا خَلَقْنَا لَهُم مِّمَّا عَمِلَتْ أَيْدِينَا أَنْعَامًا فَهُمْ لَهَا مَالِكُونَ )**[٣]

**ژباړه : ايا دوي نه ويني چې مونږ پيدا کړي دي له هغې څه نه چې ځمونږ لاسونو جوړ کړي دي چارپايان چې دوی د دغې چارپايانو واکداران او مالکان دي .**

**او الله پاک فرمايي : ( إِنَّمَا تُجْزَوْنَ مَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ )**[٤]

**ژباړه : يقينا چې بدله درکول کيږي تاسو ته د هغې عمل چې تاسو به کوو .**

**او په دې کې شک نشته چې هغه فعلي صفت چې الله پاک پرې خپل ځان موصوف**

---

(١)سورت نساء : ( ٨ ) .

(٢) سورت نساء : ( ٥ ) .

(٣) سورت يس : ( ١٧ ) .

(٤) سورت طور : ( ١٦ ) .

کړی دی د هغه صفت مخالف او ضد دی په کوم فعلي صفت چې د مخلوق توصیف شوی دی .

د صفتونو ترمنځ دومره مخالفت او منافات دی لکه د الله پاک او د مخلوق د ذات ترمنځ چې څومره منافات او توپیردی .

٣ - : الله پاک خپل ځان په دې توصیف کړی دی چې مخلوق ته ښودنه کوی الله پاک فرمایي : ﴿ الرَّحْمَٰنُ * عَلَّمَ الْقُرْآنَ * خَلَقَ الْإِنسَانَ * عَلَّمَهُ الْبَيَانَ ﴾ [١]

ژباړه : رحمن ذات * چې قران یې ښوولی دی ، انسان یې پیدا کړ او بیان یې ورته وښود .

او الله پاک فرمایي ﴿ اقْرَأْ وَرَبُّكَ الْأَكْرَمُ * الَّذِي عَلَّمَ بِالْقَلَمِ * عَلَّمَ الْإِنسَانَ مَا لَمْ يَعْلَمْ ﴾[٢]

ژباړه : ولوله په داسې حال کې چې ستا رب ډېر زیات کریم دی ، هغه رب چې په قلم یې ښوونه کړېده ، انسان یې په هغه څه وپوهوو چې پرې نه پوهېد .

او بیا یې خپل ځېنې مخلوق هم د ښوونې په صفت موصوف کړی دی ، الله پاک فرمایي : ﴿ هُوَ الَّذِي بَعَثَ فِي الْأُمِّيِّينَ رَسُولًا مِّنْهُمْ يَتْلُو عَلَيْهِمْ آيَاتِهِ وَيُزَكِّيهِمْ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ وَإِن كَانُوا مِن قَبْلُ لَفِي ضَلَالٍ مُّبِينٍ ﴾ [٣]

ژباړه : الله پاک هغه ذات دی چې په نالوستو کې یې د هغوی له جنس نه خپل استازی راواستوو ، د الله پاک ایتونه ورته لولي او له شرک نه یې پاکوی او د قران او حکمت ښوونه ورته کوي .

او داوړه یې سره یو ځای هم جمع کړي دي ، الله پاک فرمایي : ﴿ تُعَلِّمُونَهُنَّ مِمَّا

---

[١] سورت رحمن : ( ١ – ٤ ) .

[٢] سورت علق : ( ٣ – ٥ ).

[٣] سورت جمعة : ( ٢ ).

**عَلَّمَكُمُ اللَّهُ ﴾** (١)

**ژباړه : چې تاسو ښوونه کوئ دغې زنانو ته د هغه څه چې الله پاک تاسو ته درښودلي دي .**

**٤ – : الله پاک خپل ځان په دې موصوف کړی دی چې هغه خبر ورکوي او مخلوق يې هم بېرته په دغې صفت موصوف کړی دی .**

**الله پاک فرمايي : ﴿ وَإِذْ أَسَرَّ النَّبِيُّ إِلَىٰ بَعْضِ أَزْوَاجِهِ حَدِيثًا فَلَمَّا نَبَّأَتْ بِهِ وَأَظْهَرَهُ اللَّهُ عَلَيْهِ عَرَّفَ بَعْضَهُ وَأَعْرَضَ عَن بَعْضٍ فَلَمَّا نَبَّأَهَا بِهِ قَالَتْ مَنْ أَنبَأَكَ هَٰذَا قَالَ نَبَّأَنِيَ الْعَلِيمُ الْخَبِيرُ ﴾** (٢)

**ژباړه : کله چې پيغمبر ﷺ ځينو بيبيانو ته پټ راز ووايو ، کله چې دغه راز دغې بي بي بلې بي بي ته ووايو ، الله پاک دغه خبره خپل پيغمبر ته ښکاره کړه ، نو پيغمبر ﷺ ځينې دغه خبره خپلې رازدارې بي بي ته وکړه او ځينې نوره خبره يې ورڅخه پټه کړه ، نو بي بي ورته ووېل : چې تا ته چا خبر درکړ ؟**

**هغه ورته ووېل : زه عليم او خبردار ذات خبر کړم .**

**او په دې کې هېڅ شک نشته چې په کوم فعلي صفت الله پاک خپل ځان موصوف کړی دی ، د هغه صفت مخالف اوضد دی چې په کوم فعلي صفت چې يې مخلوق توصيف شوی دی .**

**د صفتونو ترمنځ دومره مخالفت او منافات دی لکه د الله پاک او د مخلوق د ذات ترمنځ چې څومره منافات او توپير دی .**

**٥ – : الله پاک خپل ځان په دې موصوف کړی دی چې هغه ورکول کوی ، الله پاک**

---

(١) سورت مائده : ( ٤ ).

(٢) سورت تحريم : ( ٣ ) .

**فرمایي** : ﴿ **يُؤْتِي الْحِكْمَةَ مَن يَشَاءُ وَمَن يُؤْتَ الْحِكْمَةَ فَقَدْ أُوتِيَ خَيْرًا كَثِيرًا** ﴾ [١]

**ژباړه** : **الله پاک په دین کې پوهه ورکوي چا ته چې يې خوښه شی او چا ته چې په دین کې پوهه ورکړل شي نو په يقين سره ورته ډېر خير ورکړل شو .**

**او فرمایي** : ﴿ **وَيُؤْتِ كُلَّ ذِي فَضْلٍ فَضْلَهُ** ﴾ [٢]

**ژباړه** : **او الله پاک به د هر فضل خاوند ته خپل فضل ورکړي .**

**او د ﴿ ورکړي ﴾ په صفت يې خپل مخلوق هم موصوف کړی دی ، الله پاک فرمایي** : ﴿ **وَآتُوا النِّسَاءَ صَدُقَاتِهِنَّ نِحْلَةً** ﴾ [٣]

**ژباړه** : **او تاسو ښځو ته د هغوی مهرونه په خوشحالۍ ورکړئ .**

**او په دې کې هېڅ شک نشته چې په کوم فعلي صفت الله پاک خپل ځان موصوف کړی دی ، د هغه صفت مخالف او ضد دی په کوم فعلي صفت يې چې مخلوق توصيف شوی دی .**

**د صفتونو ترمنځ دومره مخالفت او منافات دی لکه د الله پاک او د مخلوق د ذات ترمنځ چې څومره منافات او توپير دی .**

  

---

[١] سورت بقرة : ( ٢٦٩).

[٢] سورت هود : ( ٣ ) .

[٣] سورت نساء : ( ٤ ) .

## په جامعه صفتونو خبرې اترې

اوس مهال به د الله پاک په جامعة صفتونو خبرې وکړو، لکه : عظمت، علو، کبریاء، ملک، تکبر، جبروت، عزت، قوت او....نور هغه صفتونه چې د جامعة صفتونو نوم پرې رښتیا کیږي او ددې جاري مجری دي .

په قران کریم کې مونږ وینو چې الله پاک خپل ځان د( علو، عظمت، او کبریاء ) په صفتونو موصوف کړی دی .

الله پاک فرمايي : ( وَلَا يَئُودُهُ حِفْظُهُمَا وَهُوَ الْعَلِيُّ الْعَظِيمُ ) [1]

ژباړه : او د اسمانونو او ځمکو ساتنه الله پاک نه ستومانه کوي او دغه الله پاک علی ( پورته ) او عظیم ( لوی ) ذات دی .

او هم يې ځان د علو او کبر په صفت موصوف کړی دی، الله پاک فرمايي : ( اِنّ اللّـهَ كَانَ عَلِيًّا كَبِيرًا ) [2]

ژباړه : بې شکه الله پاک علی ( پورته ) او لوي ذات دی .

او الله پاک فرمايي : ( عَالِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ الْكَبِيرُ الْمُتَعَالِ ) [3]

ژباړه : الله پاک په هر پټ او ښکاره باندې پوهه او د لویې والا علي ( پورته ) ذات دی .

او خپل ځینې مخلوق يې هم د عظمت په صفت موصوف کړی دی، الله پاک فرمايي : ( فَانفَلَقَ فَكَانَ كُلُّ فِرْقٍ كَالطَّوْدِ الْعَظِيمِ ) [4]

ژباړه : پس بحر وچاودېد او هره چاودېدلې برخه يې لکه د غر په څېر لويه وه .

---

(۱) سورت بقرة : ( ۲۵۵ ) .

(۲) سورت نساء : ( ۳٤ ).

(۳) سورت رعد : ( ۹ ) .

(٤) سورت شعراء : ( ٦۳ ).

**او الله پاک فرمايي ( اِنَّكُمْ لَتَقُولُونَ قَوْلًا عَظِيمًا )** [١]

**ژباړه : بې شکه چې تاسو ډېره غټه خبره کوئ .**

**او الله فرمايي : ( وَلَهَا عَرْشٌ عَظِيمٌ )** [٢]

**ژباړه : او د دغې باچهې لپاره لوی تخت و .**

**او الله پاک خپل ځينې مخلوق د ( علو ) په صفت هم موصوف کړی دی ، الله پاک فرمايي : ( وَرَفَعْنَاهُ مَكَانًا عَلِيًّا )** [٣]

**ژباړه : او مونږ هغه اوچتې مرتبې ته پورته کړی و .**

**او فرمايي : ( وَجَعَلْنَا لَهُمْ لِسَانَ صِدْقٍ عَلِيًّا )** [٤]

**ژباړه : او مونږ ورته ( ابراهيم عليه السلام ) لويه او پورته د صدق رښتني ژبه ورکړېوه .**

**او الله پاک خپل ځيني مخلوق د ( کبر ) په صفت هم موصوف کړی دی ، الله پاک فرمايي : ( لَهُم مَّغْفِرَةٌ وَأَجْرٌ كَبِيرٌ )** [٥]

**ژباړه : د دغې خلکو لپاره بخشش او لوی اجر دی .**

**او الله پاک فرمايي : ( قَالَ بَلْ فَعَلَهُ كَبِيرُهُمْ هَٰذَا )** [٦]

**ژباړه : هغه ورته وويل بلکې دغه کار يې لوی او غټ بوت کړی دی .**

**او په دی کې شک نشته چې په کوم صفت چې الله پاک خپل ځان موصوف کړی دی ، د هغه صفت مخالف او ضد دی چې په کوم صفت مخلوق توصيف شوی دی.**

---

(١) سورت اسراء : ( ٤٠ ).

(٢)سورت نمل : ( ٢٣ ) .

(٣) سورت مريم : ( ٥٧ ).

(٤) سورت مريم : ( ٥٠ ).

(٥) سورت هود : ( ١١ ) .

(٦) سورت انبياء : ( ٦٣ ).

**د صفتونو ترمنځ دومره مخالفت او منافات دی ، لکه د الله پاک او د مخلوق د ذات ترمنځ چې څومره منافات او توپير دی .**

**٢ – : د تېر په څېر الله پاک ځان د ( مَلِک ) په صفت موصوف کړی دی ، الله فرمايي :**

**(يُسَبِّحُ لِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ الْمَلِكِ الْقُدُّوسِ الْعَزِيزِ الْحَكِيمِ )**[١]

**ژباړه : د الله پاک پاکي بيانوي ټول هغه څه چې په اسمانونو او ځمکو کې دي ، الله پاک ټولواک او نهايت پاک ، غالبه او حکيم ذات دی .**

**او الله پاک فرمايي : ( فِي مَقْعَدِ صِدْقٍ عِنْدَ مَلِيكٍ مُقْتَدِرٍ )**[٢]

**ژباړه : مؤمنان به په رښتني مجلس کې د ټولواک او قدرت لرونکي رب په وړاندې حضور وي .**

**او خپل ځينې مخلوق يې هم د ( مَلِک ) په صفت موصوف کړی دی .**

**الله پاک فرما يې : ( وَقَالَ الْمَلِكُ إِنِّي أَرَىٰ سَبْعَ بَقَرَاتٍ سِمَانٍ يَأْكُلُهُنَّ سَبْعٌ عِجَافٌ )**[٣]

**ژباړه : او ټولواک وويل چې ما په خوب کې اووه چاغې غواګانې وليدلې چې نورې خوارې غواګانې خوري ...**

**او الله پاک فرمايي : ( وَقَالَ الْمَلِكُ ائْتُونِي بِهِ )**[٤]

**ژباړه : او ټولواک وويل چې دغه يوسف عليه السلام ما ته راولئ .**

**او فرمايي : ( وَكَانَ وَرَاءَهُمْ مَلِكٌ يَأْخُذُ كُلَّ سَفِينَةٍ غَصْبًا )**[٥]

**ژباړه : او د دوی نه اخوا يو ټولواک و چې روغه بېړۍ به يې په زور او زياتي سره**

---

[١] سورت جمعة : ( ١ )

[٢] سورت قمر : ( ٥٥ ).

[٣]سورت يوسف : ( ٤٣ ) .

[٤]سورت يوسف : (٥٠ ).

[٥] سورت کهف : ( ٧٩ ).

**اخستله .**

**او فرمايي :﴿ تُؤْتِي الْمُلْكَ مَن تَشَاءُ وَتَنزِعُ الْمُلْكَ مِمَّن تَشَاءُ ﴾ (١)**

**ژباړه : اى الله ! ته ورکوې ټولواکي چا ته چې دې خوښه شي او اخلې ټولواکي له چا نه چې ستا خوښه شي .**

**او په دې کې هېڅ شک نشته چې په کوم صفت الله پاک خپل ځان موصوف کړی دی ، د هغه صفت مخالف او ضد دی په کوم صفت چې مخلوق توصيف شوی دی .**

**د صفتونو ترمنځ دومره مخالفت او منافات دی لکه د الله پاک او د مخلوق د ذات ترمنځ چې څومره منافات او توپير دی .**

  

(١) سورت ال عمران : ( ٢٦ )

## هغه صفتونه چې متکلمينو پکې اختلاف کړی دی

اوس به د الله پاک په هغې صفتونو بحث او څېړنه وکړو چې متکلمينو په کې اختلاف کړی دی چې ایا دغه ( مختلف فیه ) فعلي صفتونه دي او که صفات معنی دي ؟

سمه دروسته خبره دا ده چې دغه صفات معنی دی، ځکه چې دغه صفتونه د الله پاک د ذات پورې قائم دي لکه : رحمت، رافت، حلم.

١- : مونږ په قران کریم کې وینو چې الله پاک خپل ځان په ( رافت ) او ( رحمت ) موصوف کړی دی، الله پاک فرمايي : ( اِنّ رَبّكُم لَرءُوفٌ رّحِيمٌ ) [١]

ژباړه : بې شکه ستاسو رب ډېر مهربان او د رحم والا دی.

او خپل مخلوق يې هم په دغې دواړو صفتونو موصوف کړی دی، الله پاک د نبی کریم ﷺ په هکله فرمايي : ( قَدْ جَاءَكُمْ رَسُولٌ مِّنْ اَنفُسِكُمْ عَزِيزٌ عَلَيْهِ مَا عَنِتُّمْ حَرِيصٌ عَلَيْكُم بِالْمُؤْمِنِينَ رَءُوفٌ رَّحِيمٌ ) [٢]

ژباړه : په تحقيق سره تاسو ته ستاسو له جنس نه رسول راغلی دی، په هغه باندې هغه خبره ډېره درنه وي چې تاسو پرې تکليف کيږئ او ستاسو په هدايت مندنې ډېر زيات حريص دی او خاص په مؤمنانو ډېر زيات مهربان او رحم والا دی.

٢- : د تېر په څېر الله پاک خپل ځان په قران کريم کې په ( حلم ) موصوف کړی دی، الله پاک فرمايي : ( لَيُدْخِلَنّهُم مُدْخَلًا يَرْضَوْنَهُ ۗ وَاِنّ اللّـهَ لَعَلِيمٌ حَلِيمٌ ) [٣]

ژباړه : الله پاک به دوی خامخا داسې ځای ته داخل کړي چې د دوی به خوښ وي ،يقينا چې الله پاک ډېر پوهه او حلم والا دی.

او الله پاک فرمايي : ( وَ اعلَمُوا اَنّ اللّـهَ يَعلَمُ مَا فِي اَنفُسِكُمْ فَاحْذَرُوهُ وَاعلَمُوا اَنّ اللّـهَ

---

(١) سورت نحل : ( ٩٣ ).

(٢) سورت توبة : ( ١٢٨ ).

(٣) سورت حج : ( ٥٩ )

**غَفُورٌ حَلِيمٌ** ﴾[١]

**ژباړه : په دې پوهه شئ چې الله پاک په هغه څه پوهیږي چې ستاسو په نفسونو کې دي پس له هغه ویریږئ او پوهه شئ چې الله پاک پوهه او د حلم والا ذات دی .**

**او الله پاک فرمايي : ﴿ قَوْلٌ مَّعْرُوفٌ وَمَغْفِرَةٌ خَيْرٌ مِّن صَدَقَةٍ يَتْبَعُهَا أَذًى ۗ وَاللَّهُ غَنِيٌّ حَلِيمٌ** ﴾[٢]

**ژباړه : ښه خبره او بخشش له هغه خیرات نه بهتر دی چې وروسته ترې ازارول وي او الله پاک بې پروا او حلیم ذات دی .**

**او خپل ځینې مخلوق یې هم په دې صفت موصوف کړی دی ، الله پاک فرمايي : ﴿ فَبَشَّرْنَاهُ بِغُلَامٍ حَلِيمٍ** ﴾[٣]

**ژباړه : بې شکه مونږ ورته زېرى ورکړ په صبرناک هلک باندې .**

**او فرمايي : ﴿ لَمَّا تَبَيَّنَ لَهُ أَنَّهُ عَدُوٌّ لِّلَّهِ تَبَرَّأَ مِنْهُ ۚ إِنَّ إِبْرَاهِيمَ لَأَوَّاهٌ حَلِيمٌ** ﴾[٤]

**ژباړه : کله چې ابراهیم عليه السلام ته معلومات وشول چې پلار یې د الله دښمن دی نو ترې بې زاره شو ، بې شکه ابراهیم عليه السلام ډېر په زړه نرم او صبرناک و .**

**٣- : همدغه شان الله پاک ځان په قران کریم کې د ﴿ مغفرت ﴾ په صفت موصوف کړی دی .**

**الله پاک فرمايي : ﴿ فَمَنِ اضْطُرَّ غَيْرَ بَاغٍ وَلَا عَادٍ فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ ۚ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ** ﴾[٥]

**ژباړه : او که څوک ډېر مجبوره شو نو ﴿ د مردارې په خوړلو ﴾ پرې ګناه نشته او بې**

---

(١) سورت بقرة : ( ٢٣٥).

(٢) سورت بقرة : ( ٢٦٣ ) .

(٣) سورت صافات : ( ١٠١ ) .

(٤) سورت توبة : ( ١١٤ ) .

(٥) سورت بقرة : ( ١٧٣ ) .

شکه الله پاک ښښونکی او رحم والا دی .

او فرمايي : ﴿ لِّلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ وَإِن تُبْدُوا مَا فِي أَنفُسِكُمْ أَوْ تُخْفُوهُ يُحَاسِبْكُم بِهِ اللَّهُ فَيَغْفِرُ لِمَن يَشَاءُ وَيُعَذِّبُ مَن يَشَاءُ وَاللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴾[1]

ژباړه : د اسمانونو او ځمکې ټول شيان د الله ملکيت دی تاسو که په خپلو نفسونو کې څه پټ ساتئ او که راښکاره کوئ يې خو الله به درسره پرې حساب کوي ، الله پاک ښښنه کوي چا ته چې يې خوښه شي او عذاب ورکوی چا ته چې يې خوښه شي .

او خپل ځيني مخلوق يې هم د ﴿ مغفرت ﴾ په صفت موصوف کړی دی .

الله پاک فرمايي : ﴿ وَلَمَن صَبَرَ وَغَفَرَ إِنَّ ذَٰلِكَ لَمِنْ عَزْمِ الْأُمُورِ ﴾[2]

ژباړه : هغه څوک چې زغم او بخښش وکړي نو بې شکه چې زغم او ښښنه کول له غوره کارونو څخه دي .

او الله پاک فرمايي : ﴿ قَوْلٌ مَّعْرُوفٌ وَمَغْفِرَةٌ خَيْرٌ مِّن صَدَقَةٍ يَتْبَعُهَا أَذًى ۗ وَاللَّهُ غَنِيٌّ حَلِيمٌ ﴾[3]

ژباړه : نېکه خبره او بخښش کول له هغه خيرات نه غوره دي چې زباتل پکې وي او الله پاک بې محتاجه او صبرناک ذات دی .

او فرمايي : ﴿ قُل لِّلَّذِينَ آمَنُوا يَغْفِرُوا لِلَّذِينَ لَا يَرْجُونَ أَيَّامَ اللَّهِ لِيَجْزِيَ قَوْمًا بِمَا كَانُوا يَكْسِبُونَ ﴾[4]

ژباړه : هغو خلکو ته چې ايمان يې راوړی دی ورته ووايه چې هغه چا ته د خپل ازار بخښش وکړي چې د الله د حوادثو امېد نه لري ، د دې لپاره چې هر چاته د هغه عمل

---

(١) سورت بقرة : (٢٨٤) .

(٢) سورت شورى : ( ٤٣ ) .

(٣) سورت بقرة : ( ٢٦٣) .

(٤) سورت جاثية : ( ١٤ ).

بدله ورکړي چې دوی یې کسب کوي.

او په دې کې شک نشته چې په کوم صفت الله پاک ځان موصوف کړی دی ، د هغه صفت مخالف او ضد دی چې مخلوق یې پرې توصیف شوی دی ، د صفتونو ترمنځ دومره مخالفت او منافات دی لکه د الله پاک او د مخلوق د ذات ترمنځ چې څومره توپیر دی .

او دا هېڅ مناسب نه دي چې د مخلوق سره د تشبیه د تېښتې له وجې دې ترې ټول ثابت صفتونه نفي کړی شي .

بهر حال د هېڅ انسان لپاره دا نه دي جائز چې د الله پاک ځان له ثابت کړي صفتونو کې دومره تشدد وکړی چې د الله پاک په وړاندې د دې هجوم راوړي چې بالاخره دغه وصف ورڅخه نفي کړي ، په دې دعوه چې الله پاک په کوم صفت د خپل ځان مدحه کړې ده د هغه د شان سره نه ښائیږي ، زه ترې دغه صفت نفي کوم او پر ځای ورته داسې صفت ثابتوم چې ورسره وښائیږي .

دا هسې لیونتوب او هوس دی ، دا د هغه چا تګلاره ده چې الله پاک ترې عقلي بصیرت اخستی وي .

  

## د استواء مسئله

د مزید وضاحت لپاره کولای شو داسې مثال بیان کړو چې د اسماؤ او صفتونو قضیه پرې په ډېره ښه توګه واضحه شی ، یو مثال د ټولو اسماؤ او صفتونو د ایتونو لپاره مثال کېدای شي ځکه چې د صفتونو ترمنځ هېڅ فرق او توپیر نشته له دې کبله چې موصوف پرې یو دی ، دغه موصوف ذات د مخلوقاتو سره د مشابهت هېڅ راز رابطه او تعلق نه لري .

د الله پاک د ( استواء ) صفت چې د خلکو ترمنځ پرې د تاو تریخوالي میدان ګرم دی تر دې چې زیاتو خلکو د الله پاک له ( استواء ) صفت د فلسفي او منطق په اصطلاحاتو او جدلي ادلّو نفي کړی دی ، مونږ به هم ورته لږ څه وروسته د بطلان ګوته ونیسو او په قناعت بخش دلیلونو به ورله ناسموالی ښکاره کړوو.

دا بحث او څېړنه د هغه چا پورې خاص ده چې منطق او فلسفه یې لوستلې وي تر څو دا نقطه واضحه شی چې هغوی په باطل باندې په کوم انداز دلیل نیولی دی ؟ حق یې پرې څنګه باطل کړی دی ؟ او باطل یې پرې څنګه حق کړی دی ؟

په زرګونه خلک چې د اسلام دعوه کوی د منطق په اصطلاحاتو یې له الله پاک څخه د استواء صفت نفي کړی دی .

په اصل کې دغه منطقیان د استواء د صفت نفي لپاره لومړی استثنائی قیاس ترکیب کړي او دغه قیاس له لزومي متصلې شرطي قضیې نه جوړوي ، بیا په هغې کې د تالي – وروستني – نقیض مستثنی کړي چې په باطل ګمان یې د مقدم – مخکني – نقیض نتیجه په لاس راشي ، په دې اساس چې د لازم نفي د دې تقاضی کوي چې ملزوم دې هم نفي شی .

لکه د مثال په ډول هغوی وایي : ( لو کان الله مستویا علی العرش لکان مشابها

**للحوادث ) که چرته الله پاک په عرش مستوي و نو د مخلوق سره به يې مشابهت راغلی وای ، نو هغه د مخلوق سره مشابه نه دی ، نتیجه دا شوه چې الله پاک په عرش مستوي نه دی .**

**او دا نتیجه د قران کریم دصریح نص سره هم مخالفه ده او خپله هم باطله ده .**

**تاسو ټول په دې ډېر ښه پوهیږئ چې استواء د الله پاک داسې صفت دی چې د الله پاک د مدحې په مقام کې ذکرکېږي او استواء د هغه د کمال او جلال صفت دی په ثبوت یې هېڅ نقص نه لازمیږي .**

**او د دې صفت د کمالیت او جلالیت قرینه داده چې :**

**الله پاک په قران کریم کې په هغه ځای کې د استواء صفت ذکر کوي چې په کې ټول عقلونه د الله پاک کمال او جلال ته حیران دریان پاتې کیږي چې په لاندې ایتونو کې نمونه ډېره ښه روښانه کیږي .**

**۱ - : د مصحف په ترتیب لومړی سورت چې الله پاک وریکې خپل ځان د استواء په صفت موصوف کړی دی سورت اعراف دی ، الله پاک فرمایي : ( اِنَّ رَبَّكُمُ اللَّهُ الَّذِي خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ فِي سِتَّةِ أَيَّامٍ ثُمَّ اسْتَوَىٰ عَلَى الْعَرْشِ يُغْشِي اللَّيْلَ النَّهَارَ يَطْلُبُهُ حَثِيثًا وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ وَالنُّجُومَ مُسَخَّرَاتٍ بِأَمْرِهِ ۗ أَلَا لَهُ الْخَلْقُ وَالْأَمْرُ ۗ تَبَارَكَ اللَّهُ رَبُّ الْعَالَمِينَ ) (۱)**

**ژباړه : یقینا چې ستاسو رب هغه الله دی چې په شپږو ورځو کې یې اسمانونه او ځمکې پیدا کړي دي ، بیا یې په عرش استواء وکړه ، د شپې تورتمې د ورځې روښنایې پټوي په ډېر تلوار او تیزۍ سره دواړه یو بل راګېروي او الله پیدا کړی دی نمر ، سپوږمۍ او ستوري حال دا چې د الله پاک حکم ته تابع کړی شوي دي ، خبردار ووسئ الله پاک لره پیدا کول او امر دی او الله پاک چې د مخلوقاتو رب دی د**

---

(۱) سورت اعراف : ( ٥٤ ) .

ډېر برکت والا دی .

ایا اوس مهال څوک کولای شي چې د الله پاک نه د کمال او جلال دغه صفت نفي کړی ؟؟؟

۲ - : دوهم ځای په سورت یونس کې دی الله پاک فرمايي : ﴿ انّ رَبّكُمُ اللّـهُ الّذي خَلَقَ السّمَاوَات وَالْاَرْضَ في ستّة اَيّامٍ ثُمّ استَوَىٰ عَلَى الْعَرْش يُدَبّرُ الْاَمْرَ مَا من شَفيع الّا من بَعْد اذْنه ذٰلكُمُ اللّـهُ رَبّكُمْ فَاعْبُدُوهُ اَفَلَا تَذَكّرُون * الَيْه مَرْجعُكُمْ جَميعًا وَعْدَ اللّـه حَقًّا انّهُ يَبْدَاُ الْخَلْقَ ثُمّ يُعيدُهُ ليَجْزيَ الّذينَ امَنُوا وَعَملُوا الصّالحَات بالْقسْط وَالّذينَ كَفَرُوا لَهُمْ شَرَابٌ مّنْ حَميمٍ وَعَذَابٌ اَليمٌ بمَا كَانُوا يَكْفُرُونَ * هُوَ الّذي جَعَلَ الشّمْسَ ضيَاءً وَالْقَمَرَ نُورًا وَقَدّرَهُ مَنَازلَ لتَعْلَمُوا عَدَدَ السّنينَ وَالْحسَابَ مَا خَلَقَ اللّـهُ ذٰلكَ الّا بالْحَقّ يُفَصّلُ الْايَات لقَوْمٍ يَعْلَمُونَ ﴾ [١]

ژباړه : یقینا چې ستاسو رب هغه الله پاک دی چې پیدا کړي دي اسمانونه او ځمکې په شپږو ورځو کې ، بیا يې په عرش استواء وکړه ، د ټولو کارونو تدبیر کوي د هغه له اجازې پرته هېڅ سفارشي نشته ، دغه الله پاک ستاسو رب دی تاسو د دغه ذات عبادت وکړئ ایا تاسو څه نصیحت نه اخلئ ؟ * الله پاک ته ستاسو د ټولو بېرته ورتګ دی او دغه د الله پاک حقه وعده ده ، الله پاک لومړي پیدا کول کوي او بېرته يې بیا اعاده کوي تر څو هغه کسانو ته په انصاف سره نیکه بدله ورکړي چې ښایسته نیک عملونه يې کړي دي او ایمان يې راوړی وي اوکوم کسان چې کافر دي د هغوی لپاره د ایشېدلو اوبو څښل سزا ده ، او ورله دردناک عذاب دی ، د دی په سبب چې کفر به يې کوو * الله پاک هغه ذات دی چې نمر يې رڼا او سپوږمی يې نور کړځولې ده او د هر یو لپاره يې منزلونه مقرر کړي دي په دې خاطر چې تاسو پرې د کلونو او میاشتو ورځو حساب معلوم کړئ ، الله پاک دغه مخلوقات د حق لپاره

---

[١] سورت یونس : ( ۳ – ۵ ) .

پیدا کړي دي ، د خپل قدرت ایتونه په تفصیل سره بیانوي د هغه خلکو لپاره چې پوهیږي .

ایا اوس مهال څوک دا کولای شي چې د الله پاک نه د کمال او جلال دغه صفت نفي کړي ؟؟

۳ - : دریم ځای په سورت رعد کې دی ، الله پاک فرمایي : ( اللّهُ الّذي رَفَعَ السّمَاوَات بِغَيْرِ عَمَدٍ تَرَوْنَهَا ثُمّ اسْتَوَىٰ عَلَى الْعَرْشِ وَسَخّرَ الشّمْسَ وَالْقَمَرَ كُلٌ يَجْرِي لِاَجَلٍ مُسَمًّى يُدَبّرُ الْاَمْرَ يُفَصّلُ الْاٰيَات لَعَلّكُم بِلِقَاءِ رَبّكُمْ تُوقِنُون ) [۱]

ژباړه : الله پاک هغه ذات دی چې اسمانونه یې له ستنو پرته پیدا کړي دي چې تاسو یې وینئ او بیا یې په عرش باندې استواء وکړه او سپوږمی او نمر یې تابع کړ ، هر یو د خپلې ټاکلې نېټې پورې جریان کوي ، الله پاک د کارونو تدبیر کوي ، په تفصیل سره ایتونه بیانوي ، شاید تاسو هم د رب په ملاقات یقین وکړئ .

ایا اوس مهال څوک کولای شي چې د الله پاک نه د کمال او جلال دغه صفت نفي کړی ؟؟

۴ - : څلورم ځای په سورت طه کې دی ، الله پاک فرمایي : ( طه * مَا اَنزَلْنَا عَلَيْكَ الْقُرْاٰنَ لِتَشْقَىٰ * اِلّا تَذْكِرَةً لّمَن يَخْشَىٰ * تَنزِيلًا مّمّنْ خَلَقَ الْاَرْضَ وَالسّمَاوَاتِ الْعُلَى * الرّحْمَٰنُ عَلَى الْعَرْشِ اسْتَوَىٰ ) [۲]

ژباړه : طه * مونږ په تا باندې قران نازل کړی دی چې خپل ځان په مشقت کې وانه اچوی * دا قران کریم د هغه چا لپاره پند او نصیحت دی چې د الله پاک نه ویریږي * او دا قران کریم د هغه چا له خوا نازل شوی دی چې لوړ لوړ اسمانونه او ځمکې یې پیدا کړي دي * او دا چې رحمن ذات په عرش باندې استواء کړې ده .

---

(۱) سورت رعد : ( ۲ ) .

(۲) سورت طه : ( ۱ – ۵ ) .

ايا اوس مهال څوک کولای شي چې د الله پاک نه د کمال او جلال دغه صفت نفي کړی ؟؟

۵ - : پنځم ځای په سورت فرقان کې دی ، الله پاک فرمايي : ﴿ وَتَوَكَّلْ عَلَى الْحَيِّ الَّذِي لَا يَمُوتُ وَسَبِّحْ بِحَمْدِهِ وَكَفَىٰ بِهِ بِذُنُوبِ عِبَادِهِ خَبِيرًا * الَّذِي خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا فِي سِتَّةِ أَيَّامٍ ثُمَّ اسْتَوَىٰ عَلَى الْعَرْشِ الرَّحْمَٰنُ فَاسْأَلْ بِهِ خَبِيرًا ﴾(۱)

ژباړه : او ته په هغه ژوندي ذات توکل وکړه چې نه مړ کيږي او د ستاينې سره د خپل رب پاکي بيانوه او الله پاک د خپلو بندګانو په ګناهونو خبردار او کافی دی * هغه الله چې اسمانونه او ځمکې او چې څه يې په منځ کې دي په شپږو ورځو کې پيدا کړي دي ، بيا يې په عرش استواء وکړه ، دغه رحمن ذات دی د دغې ﴿ خلق ، يا استواء ، يا د رحمن ذات ﴾ په باره کې له خبردار عالم نه تپوس وکړه .

ايا اوس مهال څوک کولای شي چې د الله پاک نه د کمال او جلال دغه صفت نفي کړی ؟؟

۶ - : شپږم ځای په سورت سجده کې دی ، الله پاک فرمايي : ﴿ اللَّهُ الَّذِي خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا فِي سِتَّةِ أَيَّامٍ ثُمَّ اسْتَوَىٰ عَلَى الْعَرْشِ مَا لَكُم مِّن دُونِهِ مِن وَلِيٍّ وَلَا شَفِيعٍ أَفَلَا تَتَذَكَّرُونَ * يُدَبِّرُ الْأَمْرَ مِنَ السَّمَاءِ إِلَى الْأَرْضِ ثُمَّ يَعْرُجُ إِلَيْهِ فِي يَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهُ أَلْفَ سَنَةٍ مِّمَّا تَعُدُّونَ ﴾ (۲)

ژباړه : الله پاک هغه ذات دی چې اسمانونه او ځمکې او څه چې يې په منځ کې دي په شپږو ورځوکې پيدا کړي دي ، بيا يې په عرش باندې استواء وکړه ، له الله پاک څخه پر ته ستاسو لپاره نور څوک کوم سفارشي او دوست نه شته دی ، ايا تاسو پند نه اخلئ ؟ هغه له بره نه د ځمکې ټول کارونه انجاموي ، دغه ټول کارونه بېر ته هغه

(۱) سورت فرقان : ( ۵۸ – ۵۹ ).

(۲) سورت سجد ة : ( ٤ – ٥ ) .

ته د زر كاله په اندازه ورځ كې چې تاسو يې په دنيا كې شمارئ خيژي .
ايا اوس مهال څوک کولای شي چې د الله پاک نه د کمال او جلال دغه صفت نفي کړی ؟؟

٧ - : اووم ځای په سورت حديد کې دی ، الله پاک فرمايي : ﴿ هُوَ الْأَوَّلُ وَالْآخِرُ وَالظَّاهِرُ وَالْبَاطِنُ وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ * هُوَ الَّذِي خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ فِي سِتَّةِ أَيَّامٍ ثُمَّ اسْتَوَىٰ عَلَى الْعَرْشِ يَعْلَمُ مَا يَلِجُ فِي الْأَرْضِ وَمَا يَخْرُجُ مِنْهَا وَمَا يَنزِلُ مِنَ السَّمَاءِ وَمَا يَعْرُجُ فِيهَا وَهُوَ مَعَكُمْ أَيْنَ مَا كُنتُمْ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴾ [١]

ژباړه : دغه الله پاک اول دی او اخر دی او دغه الله پاک ظاهر او باطن دی او په هر شي پوهه او دانا دی * الله پاک هغه ذات دی چې اسمانونه او ځمكې يې په شپږو ورځو کې پيدا کړي دي او بيا يې په عرش باندې استواء وکړه ، هغه پوهيږي په هغه څه چې په ځمکه کې ننوځی او هغه څه چې تری راوځي او هغه څه چې له اسمان څخه رابنکته کيږي او هغه چې اسمان ته خيژي او تاسو چې چرته ياست نو الله پاک درسره دی او تاسو چې څه کوئ الله پاک يې ليدونکی دی.

نو دغه منطقي جاهلان په دې ګومان کلک ولاړ دي چې استواء د نقص صفت دی او د خپل جهل له مخې د اسمانونو او ځمکې په رب د دې هجوم راوړي چې الله پاک خپل ځان د نقص په صفت موصوف کړی دی او خپل جهل دومره حق او حقانيت بولي چې د الله پاک د دغې صفت د نفي کولو لپاره پرې سببونه لټوي چې يا خو يې تاويل وکړي او يا يې له منځه يوسي نفي يې کړي .

د استواء دغه صفت چې الله پاک ورباندې د خپل ځان مدحه کړې ده او ځان له يې ثابت کړی دی او د خپل کمال او جلال صفت ګرځولی دی ، د کماليت او جلاليت نه ډکو صفتونو سره يې يو ځای ذکر کړی دی چې عقل ترې حيران دريان پاتې کيږي ،

[١] سورت حديد : ( ٣ – ٤ ).

**ايا په رښتيا هم د دې لائق دی چې ورڅخه نفي کړی شي ؟؟!!**

**خلاصه دا شوه چې د الله پاک نه د هغه صفتونه په تاويلاتو سره نفي کول د متاوّل انسان په جهل ستره او لويه ننبه ده .**

  

## د تاويل فتنه

له تېرې څېړنې وروسته بايد تاسو د تاويل په اړه هم بېدار ووسئ، د دې امت زياتره خلک په دې فتنه اخته دي او د دې فتنې له کبله بې لارې شوي دي .

د تاويل اطلاق په اصطلاح کې په درېو معناګانو کېداى شي :

۱ – : په هغه څه يې هم اطلاق دروست دى چې په دوهم حالت کې ورته د يو شي حقيقت اوړي او په قران کريم د تاويل معنى هم دا ده ، الله پاک فرمايي : ﴿ ذَٰلِكَ خَيْرٌ وَأَحْسَنُ تَأْوِيلًا ﴾ [1]

ژباړه : دغه الله پاک او رسول ته رجوع کول د عاقبت له جهته ډېر ښه کار دی .

او الله پاک ﴿ وَلَمَّا يَأْتِهِمْ تَأْوِيلُهُ ﴾ [2]

ژباړه : او نه و راغلى دوى ته معنى او حقيقت د قران کريم .

او الله پاک فرمايي : ﴿ يَوْمَ يَأْتِي تَأْوِيلُهُ يَقُولُ الَّذِينَ نَسُوهُ مِن قَبْلُ ﴾ [3]

ژباړه : په هغه ورځ چې د دې عاقبت راشى ، نو هغه کسان به ووايي چې په دنيا کې يې دغه کتاب هېر کړى و .

نو دلته د تاويل معنى دا ده چې حقيقت د امر به دوهم حالت ته واوړي.

۲ – : د تاويل اطلاق په تفسير هم کېداى شي او دا هم مشهور او معررف قول دى ، لکه ابن جريرطبري چې د ايت په هکله وايي : ﴿ القَوْلُ فِيْ تَأْوِيْلِ قَوْلِهِ تَعَالَى كَذَا ﴾ يعنې تفسير يې دا دى .

۳ – : د اصولينو په اصطلاح کې تاويل دې ته ويلاى شي چې د دليل له امله د لفظ ظاهر او متبادره معنى بلې معنى ته واړول شى .

---

(۱) سورت نساء : ( ۵۹ ) .

(۲)سورت يونس : ( ۳۹ ) .

(۳) سورت اعراف : ( ۵۳ )

هېره دې نوي چې لفظ له خپلې ظاهرې متبادرې معنی نه بلې معنی ته اړول د اصولینو په نېز درې حالتونه لري :

ا – : لفظ له خپلې ظاهرې او متبادرې معنی نه بلې داسې معنی ته اړول چې د قران کریم او نبوي حدیث نص پرې صحیح دلالت کوي .

د تاویل دا نوعه صحیح او سمه ده ، قابل اعتبار او مقبوله ده ، د علماوو په نېز پکې هېڅ اختلاف نشته ، مثال يې دا دی لکه نبي ﷺ فرمايي : (الْجَارُ اَحَقُّ بِصَقْبِه) [(١)]

د حدیث ظاهر نه د ګاونډي لپاره شفعه ثابتیږي خو په شریک مقاسم باندې د حدیث حمل کول په محتمل مرجوح باندې د لفظ حمل دی ، چې نه خو يې ظاهري معنی ده او نه ذهن ته متبادره ده .

مګر دومره خبره ده چې د جابر رضي الله عنه صحیح حدیث دی چې : (فَاِذَا ضُرِبَتِ الْحُدُوْدُ وَصُرِفَتِ الطُّرُقُ فَلاَ شُفْعَةَ)

ژباړه : چې کله پولې وټاکل شي او لارې بېلې شي نو شفعه نشته .

دا حدیث په دې ښکاره دلالت کوي چې مراد د هغه ګاونډي نه چې د نزدېکت په سبب ډېر حقدار وی هغه دی چې شریکوال مقاسم وي .

نو د تاویل دا ډول چې لفظ د خپلې ظاهرې او ذهن ته متبادرې معنی نه د کتا ب او سنت د څرګند دلیل د شتون له کبله بلې معنی ته واړول شی رجوع هم ورته واجب ده او دې ته تاویل صحیح او تاویل قریب هم ویل کیږي ، خو دا هله چې نص ورباندې سم دم دلالت وکړي .

ب – : د تاویل دوهم حالت دا دی چې لفظ له خپلې ظاهرې او ذهن ته متبادرې معنی نه بلې داسې معنی ته واړول شي چې مجتهد ورباندې د صواب عقیده ساتي خو ولی

---

(١) حدیث بخاری په : ( ٤ / ٤٣٧ ) او ابوداود په : ( ٣٥١٦ ) رقم روایت کړی دی .

او د حدیث معنی دا ده : ګاونډي ډېر زیات حقدار دی په سبب د نزدیکت .

په نفس الامر کې دليل نه شي جوړېدای .

د اصولينو په اصطلاح کې دې ته تاويل بعيد او تاويل فاسد ويل کيږي ، او ځينې علماء د دې تاويل مثال د امام ابوحنيفه رحمه الله دا تاويل ذکرکوي چې د ( امْرَاَةٌ ) په اړه يې په دی حديث کې چې ( اَيُّمَا امْرَاَةٍ نَكَحَتْ بِغَيْرِ اِذْنِ وَلِيِّهَا فَنِكَاحُهَا بَاطِلٌ ) [١]

هغه دلته لفظ د ( امْرَاَةٌ ) نه د مکاتبې معنی اخستی ده هغوی وايي: دحديث حمل په مکاتبې باندې دې ته تاويل بعيد وايي ځکه چې د لفظ نه خپله ظاهره او متبادره معنی واړول شوه .

ځکه په ( اَيُّمَا ) کې ( اَيٌّ ) د عموم صيغه ده او د عموم صيغې تاکيد ييرته په ( ما ) زائده سره شوی دی .

نو حمل د لفظ په نادر صورت - چې مکاتبه ده - هغه يقينی دليلورباندې نشته چې رجوع ورته واجبوي .

ج – : اما بغير له کوم دليل نه لفظ په غير ظاهرې معنی حمل کول دې ته بالکل په اصطلاح کې تاويل نه ويل کيږي ، بلکې دې ته د الله تعالی په کتاب او د نبي ﷺ په سنتو لوبې کول ويل کېږي او تاويل د دې نوعې څخه غالبه د روافضو د دې ايتونه تفسير دی چې ( وَاِذْ قَالَ مُوسَىٰ لِقَوْمِهِ اِنَّ اللّٰهَ يَاْمُرُكُمْ اَنْ تَذْبَحُوا بَقَرَةً ) [٢]

ترجمه:کله چې موسی عليه السلام خپل قوم ته وويل چې الله پاک درته امرکوي چې غوا حلاله ( ذبحه) کړئ .

هغوی وايي : د غوا نه مراد عائشه رضي الله عنها ده .

نعوذ بالله

د دې تاويل له جملې څخه دا هم دي چې د توحيد الاسماء والصفات باندې ټول

---

(١) ارواء الغليل : ( ٦ / ٢٨٣ )

(٢) سورت بقرة: ( ٦٧ ) .

دلالت کونکي قراني ایتونه له خپلې ظاهرې او ذهن ته متبادرې معنی نه نورو داسې معناګانو ته واړول شي چې الله پاک وربانديې هېڅ دلیل او برهان نه وي نازل کړی .
د روافضو په څېر دوی هم د استوی معنی په استولی باندې کوی او دا هېڅکله د تاویل په صحیحو اقسامو کې نه شي داخلیدای ، ځکه چې یو خو د استولی په صحت هېڅ شرعي دلیل نشته چې دغه معنی دې ترې مراد وي ، او له بلې خوا اصولیین هم دغسی تاویل په لهو لعب نوموي .
په دغسې نازیبا الفاظو باندې د قران کریم تفسیر کول د الله پاک په کتاب لوبې کول دي ، نو له دې کبله د تاویل دا نوعه په اسلامي قاموس کې هېڅ جواز نه لري .
او دا د سلفو صالحینو مسلّمه قاعده ده چې د الله پاک له کتاب او د نبی ﷺ له سنتو څخه یو لفظ له خپلې ظاهرې معنی نه بلې داسې معنی ته اړول چې هېڅ دلیل یې صحت نه ایجابوي روا نه بلکې ناروا او حرام دي .

  

## په تاویل عقیده لړل د تعطیل ستر لامل دی

ګرانو ورنو ! دا درته له شفقت او پېرزو ډکه نصیحت کوم ښه پرې ځانونه پوهه کړئ چې :

د عقیدې اړوند ټول پیچېده او کړکېچن شرونه له داسې مسئلې څخه راولاړ شوي دي چې هم زړه کنده کوي او هم یې د تشبیه په چټلۍ لړي .

هغه زړه چې د تشبیه په چټلۍ لړل شوی وي او د الله پاک د کمال او جلال ډکو صفتونو څخه یو صفت واوري ، لکه د شپې په اخره حصه کې د دنیا اسمان ته راښکته کېدل ، په عرش باندې استواء یا د قیامت په ورځ حساب کتاب ته د هغه راتګ لکه څنګه چې د هغه د شان سره لائق دی او داسې نور ....

نو زړه خو یې له مخکې نه د تشبیه په کنده کې لړل شوی وي نه خو د الله پاک قدر او حق عزت پېژندلی وي او نه یې د الله پاک حق تعظیم کړی وي نو بلا فاصله یې په ذهني محیط کې د ناوړې مفکورې اثرات خواره شي چې د الله پاک صفتونه خو د مخلوق د صفتونو په څېر دی او دا صفت خو هو بهو د مخلوق سره مشابه دی ، نو زړه خو یې له مخکنی نه تیار په تشبیه چټل وي ، د تشبیه شومتوب او شئامت په دغه انسان باعث شي نو د الله پاک نه صفت نفي کړي په دې دعوه چې د دغه صفت په ثبوت د مخلوق سره مشابهت لازمیږي .

نو اول مشبِّه شی بیا معطِّل شی ، نو ابتداءً او انتهاءً په الله پاک تهاجمي بریدونه کوي.

دا یې بیا عقیده جوړه شی او د مخلوق سره د مشابهت له وېرې د الله پاک نه ټول صفتونه نفي کړي په دی دعوه چې دا د الله پاک سره مناسب نه دي .

په دې هم ښه وپوهیږئ چې یوه اصولي قاعده ده او ټولو اهل علمو یې په صحت اتفاق کړی دی چې :

د نبی ﷺ په حق کې هېڅ جائز نه دي چې د حاجت په مهال له بیان څخه تاخیر وکړي او په ځانګړي توګه په عقایدو کې .

فرضا که د دغې قرانی ایتونو چې په توحید الاسماء والصفات مشتمل دي په هکله یې مونږ هم د دغې باطلو عقیدو واکې په لاسونو کې کلکې ونیسو او د خپلو ځانونو لپاره یې تګلاره اختیار کړو نو بیا خو نبی ﷺ هم د استواء معنی په استیلاء نه ده کړې او نه د دې ډول تاویل په کوم اثر کې لیدل کیږي .

او که شرعی تاویل څخه دا ډول تاویل مراد وي نو نبی ﷺ به یې هم بیان ته ډېر زیات سرعت او جلتي کړې وه .

ځکه وړاندې مو وویل چې د هغه په حق کې دا هېڅ جواز نه لري چې د بیان په وخت کې تاخیر وکړي .

پایله په دې تمامه شوه چې په مسلمان مؤمن دا واجب دي چې د الله پاک په هکله داسې پاکه صافه ښایسته عقیده اختیار کړي چې یو خو په کې د شکونو شبهاتو هېڅ اثر نه لیدل کیږي او بل داسې عقیده وې چې ټول شکونه او شبهات په ښه قناعت بخش ډول ځوابوي .

دغه پاکه سپېڅلې عقیده دا ده چې :

که هر کله پاک سپین مؤمن مسلمان داسې صفت واوري چې یا خو پرې الله پاک خپله خپل ځان موصوف کړی وی او یا پرې رسول کریم ﷺ هغه موصوف کړی وی ، د شک شبهاتو پر ځای باید ورته خپله سینه له عظمت نه ډکه کړي او په قطع او جزم سره ووایي چې دغه ثابت صفت د کمال او جلال انتهایي درجې ته رسېدلی دی ، د شرف او علو نه ډک دی ، دغه عقیده د خالق او مخلوق ترمنځ د مشابهت ټولې اړیکې له ما بینه وړي او جرړې یې له بیخه پرې کوي .

د دغې عقیدې پایله دا شی چې دغسې زړه د همیشه لپاره د الله پاک له تعظیم نه ډک او په تنزیه یې کلک معتقد وي ، د تشبیه له ګندګۍ نه سالم او بچ پاتې شي .

د زړه خاوره یې د دې قابل شی چې د ایمان تخم پرې وکرل شی او هغه صفتونه چې یا خو پرې الله پاک خپله خپل ځان موصوف کړی وي او یا پرې رسول کریم ﷺ ستایلی وي د دې مبارک ایت په پیروۍ کې ثابته وي چې :

﴿لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ وَهُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ﴾ [1]

لوی شر او فساد هغه دی چې څوک د الله پاک برابري ونه کړي او د صفتونو د ثبوت په مهال یې زړه کې دا ګرځي راګرځي چې د هغه صفتونه د مخلوق د صفتونو په څېر او مشابه دي .

دغه مسکین د دې عقیدې په تورتمونو کې د دې ښکار شي چې په خپلې درواغجنې او خائنې دعوې سره د خالق پروردګار څخه ټول صفتونه نفي کړي .

دې خبرې ته باید غونډ محصلین او ټول زده کونکي بېدار ووسي .

  

(۱) سورت شوری : ( ۱۱ ) .

## په ټولو صفتونوکې وینا له یو باب څخه ده

۱ –: په دې بنه وپوهیږئ چې ټول صفتونه له یو باب څخه دي ، صفتونه سره پخپل منځ کې هېڅ توپیر نه لري په دې معنی چې موصوف ورباندې یو دی او دغه موصوف د الله پاک هغه ذات د ی چې د مخلوق سره د مشابهت هېڅ راز علاقه نه لري .
مونږ هغوی ته وایو : تاسو چې څنګه الله پاک لره د هغه د شان سره لائق سمع او بصر ثابتوئ چې د مخلوق سره هېڅ راز مشابهت نه لري نو لازمه خو دا ده چې بعینه دغه طریقه د الله پاک په نورو اسمونو او صفتونو کې لکه نزول ، استواء ، مجئ ... او په نورو هغه صفتونو کې چې د کمال او جلال نه ډک دي او هغه پرې د ځان ثناء ویلې ده هم جاري کړئ . تاسو باید په دې وپوهیږئ چې الله پاک خپل ځان په داسې صفتونو نه موصوفوي چې یا ترې نقص یا محذور او یا هم ترې محال لازمیږي، صحیح عقل دغه ټول مستحیل ګڼي ، ځکه چې الله پاک ځان په داسې صفت نه موصوفوی چې د علو ، شرف ، کمال او جلال په انتهاء کې نه وي چې دغه انتهاء پخپله د خالق او مخلوق ترمنځ د مشابهت ټولې علاقې او رامنځ ته شوي وهمونو ته د دې ایت په رڼا کې د پای ټکی ږدي ﴿لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ وَهُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ﴾[1].

  

---

(۱) سورت شورى : ( ۱۱ )

## په صفتونو کې قول بعينه په ذات کې قول دی

**۲ –: تاسو بايد په دې هم پوهه شئ چې په صفتونو او ذات کې وينا کول له يو باب څخه دي، لکه مونږ چې څنګه د الله پاک ذات داسې ثابتوو چې:**
**الله پاک شته دی، زمونږ پرې کامل، پوره او بشپړ ايمان دی، خو د هغه کيفيت په هکله له تفصيل څخه ډډه کوو.**
**همدغه شان مونږ د دغې مقدس ذات لپاره صفتونه هم ثابتوو، چې هغه موجود دي زمونږ پرې ايمان دی د صفتونو دکيفيت اړوند هېڅ تفصيل نه ورکوو.**

  

## ايا د صفتونو ايتونه د متشابهاتو له جملې څخه دي ؟

**تاسو بايده په دې پوهه شئ چې زياتره خلک د صفتونو په ايتونو باندې د متشابه نوم ږدي ، خو دغه نومونه له يوې خوا سمه دمه او له بلې خوا ناسمه ده .**

**امام مالک بن انس** رَحِمَهُ اللهُ **يې په اړه وايي :**

**استواء مجهوله نه ده ، کيفيت يې غير معقول دی ، پوښتنی کول ترې بدعت دی او ايمان لرل پرې واجب دي[1].**

**همدغه وينا بايد په نزول کې هم وويل شی چې :**

**نزول معلوم دی ، کيفيت يې غير معقول دی ، پوښتنی کول ترې بدعت دی او ايمان لرل پرې واجب دي .**

**همدارنګه نور صفتونه يا نور صفتونه تر څو دا وينا ټولو صفتونو ته تعميم شی .**

**ځکه چې ټول عربان د دغه صفتونو معناګانې پيژني او هغه صفتونه چې الله پاک ورباندې ځان موصوف کړی دی ډېر زيات کامل ، لوړ، او د مخلوق سره د مشابهت نه لري دي .**

**لکه څنګه چې د الله پاک لپاره ذات شته او د مخلوق هم ذات لري ، چونکه د خالق**

---

(۱) د استواء غير مجهوليت په دې ښکاره دليل دی چې استواء غيرمتشابه ده ، ځکه چې د عربو په ژبه کې د استواء معنی معروفه ده چې ارتفاع ده .

او دا خبره چې ( کيفيت يې غير معقول دی ) په دې ښکاره دليل دی چې د بشر ادراک ترينه عاجز دی او په څه شي چې الله خپل علم احاطه کړی وي په متشابه نومول کيږي.

په دې بناء چې وقف په دې قول ( وَمَا يَعْلَمُ تَأْوِيْلَهُ اِلاَّ اللّٰهُ ) باندې وشي ، نو په نسبت سره صفت ته غيرمتشابه وي او په نسبت سره د اتصاف کيفيت ته متشابه دی ، ځکه چې متشابه دې ته ويلای شي چې الله پاک د خپل علم پورې مختص کړی وي .

ذات ډېر زيات کامل او منزّه دی د دېنه چې د مخلوق د ذواتو سره دی مشابه شي .

**خو بهرحال** : شر هغه شر دی چې څوک د مخلوق سره د الله پاک د تشبيه عقيده وساتی او زړه يې هم د تشبيه په ګندګۍ ککړ او لړل شوی وي .

مسلمان انسان چې کله هم د الله پاک له صفتونو څخه يو صفت واوري نو پرې لازم دي چې د ثبوت کلکه عقيده ورباندې ولري او د کمال او جلال څخه يې ډک وبولي ترڅو وکولای شي د صفت دکماليت له کبله د مخلوق سره د مشابهت ټولې علاقې وشکوي .

او د (لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ وَهُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ ) د ايت په رڼا کې د تنزيه په اساس د الله پاک ټولو صفتونو ته د ايمان په جامه او د رښتنی پاک زړه د ايمان لرنې په وجه قائم او دائم وي .

  

## د صفتونو له ظاهر څخه تشبیه نه لازمېږي ترڅو تاویل ته اړ شي

دلته یوه پوښتنه پیدا کیږي چې زده کونکي ته یې نیکه او قابله پلټنه په کار ده :

١ – : په دې خبره پوهه شئ چې اصولیین وایي :

که چرته لفظ په داسې معنی دلالت وکړي چې د بلې معنی هېڅ احتمال نه پیدا کیږي ، دغه ته ( نص ) ویل کیږي .

لکه مثلا : ( **تِلْكَ عَشَرَةٌ كَامِلَةٌ** ) [١]

او که لفظ د دوو یا د زیاتو معناګانو احتمال لره ، نو د دوو حالتونو څخه به خالي نه وي ، یا خو دا چې په دغو دوو احتمالونو کې به یو له بل څخه ډېر زیات ظاهر وي او یا به سره یو شان وي .

که دواړه سره مساوي او یوشان وو مجمل ورته وایي ، لکه د نمونی په توګه :

( **عَدَى اللُّصُوصُ الْبَارِحَةَ عَلَى عَيْنِ زَيْدٍ** )

دا کلام د دې احتمال هم لري چې کېدای شي له ( **عَيْن** ) مراد سترګه وي چې غلو ورته ړنده کړه .

یا له (**عَيْن**) نه مراد د اوبو چینه وی چې د چینی ابادي یې نړولي ده .

یا کېدای شی له (**عَيْن**) نه مراد د سرو او سپینو زرو چینه وي چې هغوی غلا کړه .

نو په اصولو کې دې ته مجمل ویل کیږي ، د مجمل حکم توقف دی ترڅو بل داسې دلیل پیدا شي چې دغه اجمال په تفصیلي توګه بیان کړي چې بیا به ترې د مفصل او مبیِّن دلیل سره سمه معنی اخستل کیږي .

خو چې کله ( **نص** ) صریح وي بیا پرې عمل په کار دی ، تر هغه پورې ترې اوختل نشته ترڅو یې د نسخې کلک ثبوت نوي شوی .

---

(١) سورت بقرة : ( ١٩٦ ) .

او که چرته په دوو احتمالونو کې یو له بل څخه ښکاره او واضحه و ، نو ورته ( ظاهر ) ویل کېږي ، او مقابل ته یې ( محتمل مرجوح ) ویل کېږي .

د ظاهر حکم دا دی چې حمل په خپلې معنی سم او په بلې معنی یې حمل ناسم دی مګر د داسې قرینې په شتون کې چې معنی یې ورله بلې معنی ته اړولې وي .

د مثال په توګه ( رَاَیْتُ اَسَداً ) د اسد کلمه په حیوان مفترس کې ظاهر ده او په رجل شجاع کې محتمل مرجوح ده .

مونږ وایو : هغه ایتونه چې د صفتونو اړوند غړیدلي دي ذهن ته یې متبادره ظاهري معنی ده ، د بیلګې په توګه د الله پاک دا قول چې : ( یَدُ اللّٰهِ فَوْقَ اَیْدِیهِمْ ) [1]

ژباړه : د الله پاک لاس د دوی د لاسونو د پاسه دی .

همدغه شان د الله پاک نور هغه صفتونه چې دې ته ورته دي ، ایا مونږ به اوس دا وایو چې د ایت د ظاهره او متبادرې معنی نه مخلوق سره مشابهت دی او دا به خپله واجبي دنده بولو چې د ایت په معنی کې تاویل هرومرو وکړو او مذکوره لفظ د خپلې ظاهرې معنی نه بلې معنی ته واړو ؟؟

او یا دا ووایو چې : د ایت د ظاهرنه متبادره معنی تنزیه ده او دا به خپله واجبي دنده بولو چې په دې کلک اقرار وکړو چې د ایت ظاهري معنی تنزیه ده ؟؟!!

جواب دا دی چې : هر هغه صفت چې الله پاک ته یې نسبت شوی دی ظاهره او متبادره معنی د صفت څخه د هر مسلمان په نیز د الله پاک د مخلوقاتو د صفتونو د مشابهت نه بشپړ تنزیه او پاکوالی دی .

نو د نص په ظاهر باندې دغه اقرار دروست او سم دی چې ورپکې د مخلوقاتو څخه د مشابهت نه د الله پاک تنزیه او پاکوالی په څرګند ډول بریښي .

نو ایا د سلیم ذوق او کامل عقل څښتن په ایت کریمه کې د الله پاک د ثابتو صفتونو

---

(۱) سورت فتح : ( ۱۰ ).

ظاهري معنی کې د مخلوق سره منافات سم نه بولي ؟!

ولې نه !! قسم په الله چې په دې خبره کې د جګړو او شخړو لاره هغه څوک غوره کوي چې کبر او غرور يې سر پړسولی وي .

  

## د متکلمينو په قواعدو هغوی سره علمي مناقشه او په يې حق ملزم کول

د تيرې څېړنې له پای څخه بايد وروسته د هغې ډلې او ټولې په اړه مختصره وينا پيش کړو چې منطق يې لوستلی وي او د کلامې دلايلو له لارې يې په خپل ګمان د الله پاک څخه ځينې صفتونه نفي کړي وي.

مثلا که څوک ووايي چې : ( **لو كان الله مستويا على العرش لكان مشابها للحوادث** )
که چرته الله پاک په عرش مستوي شي نو الله پاک به د مخلوق سره مشابه شي ، او الله پاک د مخلوق سره مشابه نه دی ، نتيجه دا شوه چې الله پاک په عرش مستوي نه دی .

حالانکه دا نتيجه ناسمه ده او د بل پلوه د قرانکريم د تيروو اوو ايتونو سره کلک تضاد او منافات لري.

د تير په څير مونږ هم د مناظرې او جدل د هغې اصولو سره سم چې متکلمين پرې قايل دي وايو[1]:

دغه استثنائي قياس چې د شرطيه متصلي لزومې او د استثنائي قياس نه مرکب دي چې خپله پکې د تالي ( **وروستني** ) نقيض مستثنی دی او په دغه دليل قائم او دائم نفات په دې ښه پوهيږې چې په دغه استثنائيت کې د ( **مقدم** ) نقيض ثابت شو .

د عامو کتونکو او ناظرينو لپاره د مزيد وضاحت په خاطر مونږ دا هم وايو چې هغه استثنائي قياس چې د شرطيه متصلي لزومې قضيې نه مرکب وي له دريو اړخونو ورته قدحه متوجه کېدای شي :

۱ – : يو عيب ورته خپله د استثنائيت له نګاه نه متوجه کېږي .

۲ – : بل عيب ورته د شرطيت له نګاه نه متوجه کېږي چې د مقدم او تالي ترمنځ

---

(۱) دا د متکلمينو راوړي استثنائي قياس قدحې ته اشاره ده .

ربط سم او صحیح نه دی .

۳ – : د شرطیت له نګاه نه ورته بل عیب هم متوجه کېږي چې د مقدم او تالي ترمنځ ربط کاذب شرطیت دی او دغسي شرطیت او ربط د مقدم او تالي ترمنځ سوچه او خالص دروغ دي .

له همدي کبله خو يې د قرانکریم د اوو ایتونو سره صریح مخالفت هم راغلی دی .

د مزید وضاحت په بناء وایو چې :

ستاسو دا خبره چې ( لو کان الله مستویا علی العرش لکان مشابها للحوادث ) .

د ( لو ) او د ( لام ) ترمنځ ربط خالص دروغ دي ، دروغ دي ، دروغ دي .

بلکې الله پاک په عرش باندې مستوي دی ، هغه خپله دا ویلي دي او په دغه استواء کې الله پاک د مخلوق سره هېڅ راز مشابهت نه لري .

څرنګه چې الله پاک نور صفتونه هم لري او د صفتونو په ثبوت کې هغه د مخلوق سره هېڅ ورته والی نه لري ، دغه ډول هغه په عرش هم استواء لري او د مخلوق سره ورپکې هېڅ راز مشابهت او ورته والی نه لري.

بلکې استواء د الله پاک د صفتونو څخه یو صفت دی ، څرنګه چې د هغه نور صفتونه د مخلوق سره له مشابهت څخه پاک او منزه دي ، داسې پاک او منزه دي لکه څنګه چې د الله پاک ذات د مخلوق سره د مشابهت نه پاک او منزه دی .

زمونږ همدا استدلال د الله پاک د نورو صفتونو ثبوت ته هم تعمیم کېدای شي .

او په پای کې چې مونږ ورباندې خپلې خبرې اترې ختمو ، خپلو ځانونو او تاسو ته د الله پاک څخه په وېرې کلکه توصیه کوو او دا چې تاسو باید د الله پاک د کتاب په دریو جملو التزام وکړئ :

۱ – : (لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ) د دې ایت د غوښتنې سره سم تاسو الله پاک د مخلوق سره د هر راز مشابهت او ورته والي نه پاک او منزه وبولئ .

۲ – : ( وَهُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ ) د دې ایت د غوښتنې سره سم تاسو د الله پاک د کمال

او جلال په ټولو صفتونو باندې ایمان او باور ولرئ او د تنزیه یر بنسټ هغه صفتونه چې په قران کریم او په نبوي صحیحو حدیثونو کې ثابت وي ، د دې ایت په څیر چې ﴿ وَهُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ ﴾ وروسته د ﴿لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ ﴾ ذکر شوی دی .

٣ – : له دې څخه خپلې طمعې قطعه کړئ چې تاسو به د صفت د ثبوت سره سم د صفت د کیفیت ادراک هم وکړئ ځکه چې د صفت حقیقت د کیفیت ادراک ناممکن او محال دی ، د دې ایت د معنی سره سم چې ﴿ يَعْلَمُ مَا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ وَلَا يُحِيطُونَ بِهِ عِلْمًا ﴾ [1]

ژباړه : الله پوهیږي په هغه څه باندې چې د مخلوق نه مخکې دي او په هغه څه باندې چې د مخلوق نه وروسته دي او د مخلوق علم په الله پاک احاطه نه شي کولای .

﴿ يُحِيطُونَ ﴾ فعل مضارع ده او فعل مضارع ،فعل ماضي او فعل امر ته د نحویانو په نیز فعل صناعي ویل کیږي چې دغه درې واړه فعلونه د مصدر او زمانې نه نیابت کولای شي ،ابن مالک پخپلې الفیه کې وایي:

الْمَصْدَرُ مَا سِوَى الزَّمَانِ مِنْ * مَدْلُولَيِّ الْفِعْلِ كَأَمْنٍ مِنْ أَمِنَ

یعنې د زمانې نه سوا مصدر د فعل له دوو مدلولینو څخه د یو مدلول نوم دی .

او د بلاغت علماء هم په تبعي استعارې کې ذکر کوي چې فعل مضارع د - مصدر ، زمان ، او نسبت - نمائندګي کولای شي ، د لغت د علماوو په اجماع مصدر د فعل په معنی کې پټ دی ، احاطة په یحیطون کې پټه ده ، ګویا کې دغه د نفي حرف په مصدر داخل شوی وي ، مصدر د نفي سره دواړه داسې شول لکه نکره چې په فتحې باندې مبني وي ، معنی به داسې جوړه شي چې : د ځمکو او اسمانونو په رب باندې بشري علم هیڅ احاطه نه لري .

په دې معنی سره به د احاطې د کیفیت ټول انواع نفي کړی شي نو هغه احاطه چې

---

[1] سورت طه : ( ١١٠ ) .

علم ته منسوبه ده له الله پاک څخه منتفي ده .

له دې څخه ورسته به په تاسو باندې د استواء ، نزول ، مجئ ، لاس ، ګوتې ، تعجب ، ضحک په صفتونو کې هېڅ اشکال او ستونزې مخ ته نه راځي په دې معنی چې د الله پاک صفتونه ټول له يو باب څخه دي .

له دغه صفتونو څخه چې په کوم صفت هم الله پاک خپل ځان موصوف کړی دی هغه حق او رښتيا دي او دغه صفتونه د هغه د کمال او جلال سره لائق او ښائيږي د دغه صفتونو په ثبوت کې الله پاک د مخلوق سره هېڅ مشابهت او ورته والي نه لري .

او په کومو صفتونو چې يې مخلوق موصوف کړی دی هغه هم حق او رښتيا دي د مخلوق دغه ثبوتيه صفتونه د هغوی د حال ، عجز ، فناء او افتقار سره لائق او ښائيږي ، دا هغه لويه او غټه خبره ده چې الله پاک په دوو کلمو کې په ډاګه کړېده ، چې ﴿ لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ وَهُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ ﴾ .

په ﴿ لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ ﴾ کې له تعطيل پرته تنزيه ده ، او په ﴿ وَهُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ ﴾ کې له تمثيل پرته ايمان دی .

په ډاګه شوه چې په ﴿لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ ﴾ کې داسې تنزيه ده چې هېڅ تعطيل ترې نه لازمېږي او په ﴿ وَهُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ ﴾ کې د الله پاک په صفتونو داسې باور لرنه ده چې د تمثيل هېڅ نوعه ترې نه لازمېږي .

دغه تير معتقد په دې بناء دی چې د ايت لومړی برخه تنزيه ده او وروستنۍ برخه يې اثبات دی .

نوکه څوک د ﴿ لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ ﴾ کې په تنزيه عمل وکړي او ﴿ وَهُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ ﴾ کې په صفاتو ايمان او باور ولري او د دې ايت ﴿ وَلَا يُحِيطُونَ بِهِ عِلْمًا ﴾ موافق د الله پاک د صفتونو د حقيقت د ادراک کولو څخه خپلې طمعې قطعې کړي ، نو دغه سړی به د ټولو تيروتنو او خطاګانو څخه روغ رمټ او سالم پاتې شي .

او ما تاسو ته بار بار ويلي دي او د زيات ترکيز په بناء يې بيا هم يادونه کوم چې د

دې دروېواړو اساسونو په بناء خپل ايمانونه سم دم کړئ چې :

١ — : الله پاک د مخلوق سره د ورته والي نه پاکول .

٢ — : په هغي صفتونو کلک باور لرل چې په قراني ايتونو او يا هم په نبوي حديثونو کې يې سم دم ثبوت راغلی وي او د دغه صفتونو له نفي کولو څخه ډډه کول او د ټولو ثابت شده صفتونو په اړه په الله پاک هجوم نه راوړل .

٣ - : د صفت د حقيقت او کيفيت له ادراک څخه طمعه قطعه کول .

ای ورنو !! تاسو څه فکر لرئ که تاسو ته چرته په دې عقيدې مرګ راشي او په دې عقيده مړه شئ تاسو څه وايئ چې الله پاک به د قيامت په ورځ تاسو په دې ملامته کوي چې د مخلوق سره د ورته والي څخه مو ولې منزه بولم ، په دې به تاسو ملامته کوي ؟؟؟

او تاسو څه فکر لرئ چې الله پاک به تاسو په دې ملامته کوي چې تاسو يې ولې په ثبوتيه صفتونو ايمان او باور لرو ؟؟؟؟

او يا به تاسو په دې ملامته کوي چې تاسو د الله پاک په ټولو هغه څه کې ولې تصديق کړی دی چې هغه پرې د ځان ثناء ويلې ده ؟

او تاسو ته به دا وايي چې زما لپاره مو ولې هغه صفتونه ثابتول چې ما خپل ځان لپاره په قرانکريم کې او يا راله خپل پيغمبر ثابت کړي وو ؟

نه ! په الله قسم چې الله پاک تاسو په دې نه ملامته کوي او نه تاسو ته د دې عقيدې په سمبالولو کې ستونزې راولاړيږي .

او نه مو الله پاک په دې ملامته کوي چې د هغه د صفتونو د حقيقت او د کيفيت ادراک مو ولې نه دی کړی ؟

او ولې مو ورڅخه ډډه کوله ؟

او يا مو ولې ورڅخه طمعه قطع کړېوه ؟

او يا مو ولې زه په مدرکه کيفيت نه وم پيژندلی ؟

**مونږ وايو :**

**که چرته متشدد او لجوج انسان ووايي چې مونږ خو د مخلوق له نزول پرته د نزول بل هېڅ کومه نوعه نه پيژنو ، يا د استواء لکه څنګه چې يې مخلوق کوي بل هېڅ نوعه استواء نه پيژنو ، يا د لاس کيفيت لکه څنګه چې مخلوق لري بل هېڅ راز کيفيت نه پيژنو ، زمونږ د نه معرفت له کبله که تاسو مونږ ته د دغې صفتونو معقول کيفيت راوپيژنئ چې عقل يې هم ايجاب کړي او ورپکې د مخلوق نه د تنزيه د قواعدو مراعات هم وکړی شي نو ښه به وي .**

**په ځواب کې ويلای شو چې :**

**دا هغه پوښتنه ده چې امام مالک بن انس رَحِمَهُ اللهُ ورته خپله ځواب ويلی دی چې : د الله پاک د صفتونو د کيفيت څخه پوښتنه کول بدعت دی .**

**د دغې سره سره بيا هم مونږ وايو :**

**ای متشدد او بې لارې شوی پوښتونکيه !**

**هغه الله پاک چې خپل ځان يې د نزول ، استواء ، يد ، سمع ، بصر ، قدرت ، کلام ، اراده او د علم په صفتونو موصوف کړی دی ، د دغې ذات کيفيت څنګه دي ؟**

**ايا ته دغه کيفيت پيژنې ؟**

**هغه به خامخا وايي چې : نا .**

**مونږ ورته وايو چې د صفت دکيفيت پيژندنه د ذات کيفيت پيژندنې پورې متوقف دي ، ځکه چې صفتونه د ذات په اختلاف سره تغير او بدلون خوري .**

**د نمونې په توګه وايو ، حالانکه الله پاک لره مثالونه نشي بيانيدای ، ځکه الله پاک لپاره مثل اعلی دی ، که څه هم د الله لپاره مثالونه نه شي بيانېدای خو ولې د قران کريم د اسلوب له مخې په ځينو کې مانع نشته ، مونږ وايو :**

**علامة ابن القيم رَحِمَهُ اللهُ وايي :**

**د ( رَأْسٌ ) لفظ که ما ل ، غر او يا هم وادي ته مضاف کړئ نو داسې به وايئ چې :**

**رَأسُ الْمَال، رَأسُ الْجَبَل ، رَأسُ الْوَادِي .**

**وګوره چې یوې کلمې د مجرد اضافت له حیثیته څومره بېلابېلې معناګانې ورکړې خو چې دغه اختلاف په ضعیف او مسکین مخلوق کې محسوس کېدای شي نو ستا په هغه توپیر او اختلاف کې څه رایه ده چې د خالق او د مخلوق ترمنځ ده ؟؟!!**

**ای ورنو ! په پای کې یو ځل بیا خپلې خبرې ته ستنیږو ، تاسو او خپل ځان ته په تقوی او په لاندنې دریو کلماتو د التزام توصیه کوم :**

**۱ – : خپل رب د مخلوقاتو سره د مشابهت نه پاک کړئ .**

**۲ – : تاسو د الله پاک په حق کې د هغه صفتونو مثبتین جوړ شئ چې یا خو یې خپل ځان لپاره په قران کریم کې ثابت کړي دي او یا ورله نبي کریم ﷺ په صحیحو حدیثونوکې ثابت کړي وي ، د دې ایت د تنزیه په اساس چې ( لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ وَهُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ ) .**

**۳ – : د دې ایت په اساس چې ( وَلَا يُحِيطُونَ بِهِ عِلْمًا ) تاسو له دې څخه خپلې طمعې قطعي کړي چې د صفت د کیفیت ادراک به وکړی شئ .**

  

## د سلفو صالحينو او د خلفو د مذهب ترمنځ کره کتنه

د ځيرېنې پای د هغه څه په ياد سر ته رسول غواړو چې دوی ورته د سلفو او يا د خلفو مذهب وايي .

دوی وايي : د سلفو مذهب ( اسلم ) ډېر سالم ، او د خلفو مذهب محکم دی .

مونږ وايو : دوی خپله د سلفو مذهب د ( اسلم ) په کلمې موصوف کړی دی ، او ( اسلم ) د ( السلامة ) نه د مبالغې صيغه ده .

کله چې يو شی په بل تفوق حاصلوي نو له شک او شبهې پرته ترې هغه ډېر محکم او اعلم هم وي .

دوهم : په دې ښه وپوهېږئ چې په تمامو تاويل کونکو باندې د امام شافعي – رحمه الله – دا قول ډېر ښه تطبقيږي چې:

رَامَ نَفْعاً مِنْ غَيْرِ قَصْدٍ ** وَمِنِ الْبِرِّ مَا يَكُوْنُ عُقُوْقاً

ژباړه : موخه يې خير رسونه وه خو له قصد پرته ترې د خير پر ځای شر ورسېد کله ناکله نيک کارونه ازار جوړ شي .

د مقارنې د مزيد وضاحت اړوند دومره ويلای شوو چې څوک هم د سلفو صالحينو په مذهب وي او د الله پاک دا قول واوري چې ( الرَّحْمَنُ عَلَى الْعَرْشِ اسْتَوَىٰ ) دغه صفت چې الله پاک ورباندې د ځان مدحه ويلي ده د اوريدو سره سم يې زړه د الله پاک د اجلال ، عظمت او لويوالي نه ډک شي او په دې کلک باور ولري چې د الله پاک دغه صفت چې ځان يې پري موصوف کړی دی ، د کمال او جلال نهايه ورباندې دومره تمامه ده چې د مخلوق سره د مشابهت او ورته والي ټول علاقات او او روابط له منځه وړي .

ځکه د صفت له ثبوت نه دا نه لازمېږي چې د صفت صانع دې هرو مرو د مخلوق سره ورته والی ولري .

دغه صفت ته د اجلال او تعظیم لرنې سره صفت په اشرف المعاني تفسیرول په سلفي مؤمن باندې په دغې صفت باور لرل ډېر زیات اسان وي چې د تنزیه په اساس یې هغه هم الله پاک لره داسې ثابت کړي لکه الله پاک چې خپله څنګه د ځان لپاره ثابت کړی دی ، نو لومړي خو د تشبیه د کندکې نه پاک صفا پاتې شو او په دوهمه مرتبه کې د الله پاک په صفتونو باندې د تنزیه په بنسټ باور لرونکی او تصدیق کونکی جوړ شي، په دې مرحله کې د تعطیل له کندکې نه سالم او روغ رمټ پاتې شو .

نو دغه انسان د الله پاک د دې قول سره سم چې ﴿ لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ وَهُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ ﴾ مناسب د الله پاک په صفتونو ایمان هم راوړ او د د مخلوق سره له تمثیل پرته یې د تنزیه لاره هم اختیار کړه .

او په دې کې شک نشته چې دغه انسان له شک او شبهې پرته د سمې سالمې لارې پیروکار دی .

دغه لار ځکه سالمه ده چې د ﴿ لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ وَهُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ ﴾ د ایت په بناء هم د تنزیه له جهته او هم په صفتونو د ایمان لرلو له جهته په کلک بنسټ ولاړه ده .

نو له تعطیل پرته یکې تنزیه ده او له تمثیل پرته یکې ایمان دی .

او په یقین سره چې دغه لاره د ثابتې سلامتۍ لار ده او په قران کریم باندې خالص عمل کول دي .

دا هغه مذهب دي چې دوی یې د سلفو په مذهب نوموي.

اوکوم مذهب ته چې دوي د خلفو مذهب وایي په دې اساس چې دوی د تنزیه د نوم د سیوري لاندې د الله پاک د ټولو صفتونو په نفي قایل دي په دې بهانه چې د مخلوق سره ترې ورته والی لازمېږي .

خو دومره ده چې د دغې تنزیه د محاولې په نتیجه کې دوی په درې مصیبتونو اخته شوي دي چې یو یې له بل څخه لوی اوغټ دی :

۱ –: دوي چې کله د الله پاک دا قول واوري چې ﴿ الرَّحْمَـٰنُ عَلَى الْعَرْشِ اسْتَوَىٰ ﴾ نو ګمان کوي چې د ايت د ظاهر نه د خالق او د مخلوق د استواء ترمنځ مشابهت او ورته والي لازمېږي ، نو دغه صفت چې الله پاک ورباندې ځان په محکم کتاب کې موصوف کړی دی ، د هجوم راوړنې سره سره پرې دا دعوه هم وکړې چې ظاهر د ايت نه په استواء کې متبادره معنی د مخلوق سره مشابهت دی .

ګويا دوی الله پاک ته داسې وايي چې : د استواء دغه صفت چې په قرانکريم کې ورباندې تا خپل ځان په اوو ايتونو کې موصوف کړی دی او د خپل ځان ثناء دې پرې ويلې ده د دغه صفت له ثبوت نه ظاهرا نجستوب او ګندګي په ډاګه کېږي او هم ورپکې د مخلوق سره مشابهت دی ، دغسې صفتونه تا سره نه ښائيږي .

او پليته عقيده او ګنده خبرې هغه وې چې خالق په کې د مخلوق په څېر وبلل شي .

سُبْحَانَكَ هَذَا بُهْتَانٌ عَظِيمٌ

په قراني نصوصو ټيل مټال راوړنه د دغې خلکو لومړی مصيبت دی چې ورباندې اخته شوي دي ، په دې دعوه چې د صفت د ثبوت نه په ظاهره کې د خالق او د مخلوق ترمنځ ورته والی او تشبيه منځ ته راځي ، د هغوی په دې مصيبت کې اخته کېدو اړوند ستا لپاره همدومره علم او خبرتيا کافي ده .

دا مصيبت چې کله د خلکو په ذهنونو کې ځای پر ځای شو او د تشبيه په ګندګۍ يې زړونه ککړ شول نو خپله دې ته مجبور شول چې د استواء صفت چې په قرانکريم کې ورباندې اوو ايتونو ظاهراً دلالت کړی دی نفي کړي .

۲ –: هغه صفت چې الله پاک خپل ځان لپاره ثابت کړی دی ، دوی احمقانو د قراني ايتونو او نبوي حديثونو له دلالت نه بغير نفي کړ، دا دوهم مصيبت دي چې دوی ورباندې اخته دي .

لومړی خو يې قراني نصوص په هغې معناګانو حمل کړل چې د الله پاک سره هيڅ مناسب نه وو او د هغه محظور په بناء چې دوي يې ګمان کو دغه نصوص د خپل اصل

نه هم نفي کړل .

۳ – : دريم مصيبت چې دوی پرې اخته دي دا دی چې دوی کله هم له الله پاک څخه کوم صفت نفي کړ نو د صفت تفسير يې په بل داسې صفت کړی دی چې د الله پاک د ذات سره هېڅ مناسب نه دي ، په دې معنی چې وحي ته هېڅ استناد نه لري .

سره له دې چې دغه صفت چې دوی وربانديې د الله پاک صفت شرحه کړی دی د مخلوق سره ډېر زيات ورته والی او مشابهت لري .

دوی وايي : ( اسْتَوَى ) صفت په ظاهره کې د مخلوق د استوی سره مشابهت لري په دغې اساس مونږ د استوی معنی په ( استولیٰ ) سره کوو .

او د خپل معتقد لپاره يې د شاعر په دې شعر دليل نيولی دی چې :

قَد اسْتَوَى بِشْرٌ عَلَى الْعِرَاقِ ** مِنْ غَيْرِ سَيفٍ أَوْ دَمٍ مُهْرَاقِ

او دوی په دې هم نه پوهيږي چې هغه استيلاء- د دوی په ګمان - چې الله پاک په عرش کړې ده په عراق باندې يې د بشر بن مروان د استيلاء سره مشابه کړه .

او په صفتونو کې د دې نه بله غټه تشبيه نشته .

نو ايا د يو مسلمان سره دا مناسب دي چې د الله پاک استيلاء- د دوی په ګمان - په عراق باندې د بشربن مروان د استيلاء سره يو شان کړي ؟

او په ټولو صفتونو کې د استيلاء صفت بد ترين صفت دی چې د مخلوق سره ورپکې ورته والی ډېر زيات امکان لري .

ځکه د استيلاء په صفت کې د الله پاک تشبيه په خر باندې د خروال د استيلاء سره هم راځي او...

او په دې کې ټول هغه مخلوقات هم داخليږي چې په نورو مخلوقاتو استيلاء او غلبه حاصله کړي او د استيلاء په صفت کې د تشبيه دومره ډېر انواع دي چې د الله پاک پرته يې نور څوک نه پيژني او نه يې څوک شمېرلای شي .

دا مقارنه مونږ په نورو ځايونو کې سمه دمه واضحه او مفصله څيړلې ده ، دلته مو ورته

اشارات وکړل .

علم د الله پاک سره دی ، هغه زمونږ لپاره کافي او ډېر ښه ذمه وار دی .

( وصلیٰ الله وسلم علی خیره خلقه محمد و علیٰ اله صحبه اجمعین )

# نوم لړ

# د ژباړن دیني اثار

- ✍ تهذیب سیرة ابن هشام . ( ژباړه )
- ✍ د یهودیت او نصرانیت څېړنیز تحقیق ( ژباړه ))
- ✍ د کفر شرعي حقیقت او مهم ضوابط . ( ژباړه )
- ✍ د اسلامي دین بشپړتیا او د بدعاتو ستونزې . ( ژباړه )
- ✍ مونږ او سلف صالحین موازنه ..او پرتله... ( ژباړه )
- ✍ د سورت فاتحې اړوند د شبهاتو ازاله . ( ژباړه )
- ✍ په اسلام کې د ازادۍ سپیڅلي مناورونه . ( لیکنه )
- ✍ په شریعت کې پیر او پلور ..احکام او مسائل ( لیکنه )
- ✍ د اسلامي دین ښېګړې او فایدې . ( ژباړه )
- ✍ نیکو عملونو ته د هر مسلمان لارښود. ( ژباړه )
- ✍ اسلامي ثقافت پرمختګ او لارښوني ... ( لیکنه )
- ✍ د اسلامي احکامو مستنده ټولګه . ( لیکنه )
- ✍ په قراني ایتونو کې د توحیدالاسماء والصفات تحقیق او څېړنه ( ژباړه